Kandahar. Kabul
Vol.11, No.10, Jadi 1349
(December 1970)




# کندهار



زموږ ګران ټولواك همايوني معظم اعليحضرت دهيوادشمالي ولاياتو ته
په خپل وروستي شاهانه سفر کي کله چي دسمنګان په ولايت کي
دخلکو دشاه دوستي او تودو احساساتو سره بدرقه کيږي

کندهار

د ۱۳۴۹ امریز کال مرغومی میاشت

# پوهنه او پرمختګ

داوسنی ژوند شرایط چی د تیرو پیړیو په نسبت بدلون پیدا کړیدی داځکه چی بشر تل د طبیعی غریزی له مخی د علمی انکشافاتو له لاری د خپلی نیکمرغی او آرامی په لټه کی دی او هره ټولنه غواړی چی د عصر د مقتضیاتو او ایجاباتو له مخی د انکشافی سیر په لړ کی خپل برم خوندی کړی.

د تاریخی شواهدو له مخی چی وینو، بشری ټولنو د هیڅ یوه آفته څخه دومره اضرار نه دی موندلی لکه د جهل او ناپوهی څخه نو پدی اساس ویلای شو چی جهل او ناپوهی د بشری ټولنو لومړنی دښمن دی، نو ځکه بشری ټولنو د تاریخ په ادوارو کی د خپلی آرامی په ملحوظ د ارتقائی سیر د موانعو د منځه وړلو په غرض د عصر د ایجاباتو سره سم زیاتی ستومانی ګاللی دی او نور هم هاند کوی چی د ټولنو د ژوند د سطح د نوی او آسوده ژوند پر لور د ارتقا و نهائی پړاو ته ورسیږی چی د دغو ټولو پرمختګونو د عواملو یوازینی لاره همدغه پوهنه ده.

که موږ د نړی د موجوده تمدن ته ځیر شو او هغه هیوادونه چی نن ورځ د ترقی او پرمختګ و لوړو مدارجو ته رسیدلی دی د پوهی په رڼا کی ئی د نوو اختراعاتو او علمی انکشافاتو په وجه ئی د طبیعت ډېر پټ او مرموز اسرار د مځکی پر مخ، د ننه په مځکه حتی په فضا او بېګانه ؤ کړو کښی څرګند کړیدی او هم ئی د هر شی علت او معلول کشف کړیدی دا ټول له رفعت د پوهنی او عرفان برکت دی چی بشری جوامعو ته ئی دا زمینه مساعده کړیده چی د جهل، طبیعی آفاتو او نورو اجتماعی بحرانونو څخه ځانونه خوندی کړی.

په نړی کی ډیر واړه هیوادونه شته چی د نفوسو له نقطهٔ نظره ډیر لږ مګر د علم او پوهی پانګه یی زیاته ده تر ځینو لویو هیوادو چی د علم څخه بی برخی دی ډیر مخته تللی مترقی او آرام دی، نو پدی اساس دا منل شوی خبره ده په هره اندازه چی بشری ټولنی د علم او عرفان په تجهیزاتو مجهزی وی په هغه اندازه ئی په بشری جوامعو کی د تنظیم او انکشاف د تللی مقیاس لوړ دی.

نو څرنګه چی د ترقی او پرمختګ لومړنی اساس په علم پوری مربوط دی نو ځکه زموږ مطبوعه حکومت د ډیری مودی راهیسی په ګران هیواد کی دورځ په ورځ زیاتیدونکو اړتیاو له کبله د عام علم د زده کړی په غرض خپله خاصه پاملرنه د پوهنی و انکشاف ته راګرځولی ده چی د انکشافی پلانونو په برکت ئی د معارف د تعمیم په برخه کی د پوهنی، روزنی ښودنی په لاره کی جدی اقدامات شروع کړیدی چی د هیواد په هره برخه کی علاوه پر رسمی ښوونځیو تربیوی مؤسسات د افغان ولس د افکارو د روښانه کولو په ملحوظ په کار اچولی او ځینی نور داسی انکشافی پلانونه ئی د علمی او فنی لاری ترلاس لاندی دی چی دا ټول له ورځ په ورځ د ګران هیواد د نیمګړتیاو د بشپړیدو او د عصر د مقتضیاتو سره سم د عصری او مرفه ژوند د تامین زیری را کوی.

څرنګه چی پوهنه او علم د یوه هیواد د ټولو پرمختګونو یوازینی عامل دی نو ځکه پر موږ لازمه ده چی د خپل ژوند د ښه کیدو په ملحوظ د تعلیم او تفهیم په لاره کی لکه څنګه چه ښائی د استفادی قدرت په ځان کی پیدا کړو او هم هاند وکړو چی د اجتماعی وجائبو له مخی په خپلو کلکو مجاهدو د علم او پوهنی د ځلاندو پلوشو په رڼا د ګران افغانستان د ترقی او د ټولنی د خیر او بهبود په لاره کی د معظم ټولواک تر سیوری لاندی او چټ ګامونه واخلو او پدغه لاره کی خپل جدوجهد وساتو او د کلی خیر مصدر وګرځو.

دامتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه
مسؤل مدیر: زلمی (بارک)

کندهار — کالنی بیه
میاشتنی خپرونه — په کندهار کی [۲۸] افغانۍ
ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی — دهیواد په داخل کی [۳۲]»
اداره: د شهیدانو واټ — په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر
د تاسیس کال ۱۳۳۹ — د مرغومی میاشت
دیوولسم کال لسمه ګڼه — ۱۳۴۹ لمریز کال
پر له پسی ګڼه ۱۳۴

## ددې ګڼې مضامین



د کندهار دولتی مطبعه

# د پښتو پر شفاهي کیسه

یوه مقدمه

داروپا خواته ورشیوه کیدی او دهغو سیمو له بومي اقوامو سره یې جګړې کولې .

ددغو داستانو حکایات البته قدیم وه او په ولس کې په شفاهي ډول ویل کیده څو د میلاد څخه په اتمه ترمخنۍ پیړۍ کې هومیر هغه منظوم کړل .

## دهندي حماسه

### رامایڼ او مهابهارات

ویدایي ادب دنړۍ قدیم ترین آثار ساتلي دي او دهغه داستانونه هم د قدیم یونان د ادبیاتو په شان داریایي ولس هغه کیسې دي چې په مختلفو وختونو کې تکمیل شوي او دلرغوني کلتور په معرفۍ کې ډیره مرسته کوي .

له ایلیاډ او اوډیسې چې دلویدیځې نړۍ قدیم حماسې بلل شویدي او دختیځې نړۍ په ادب هم رامایڼ او مهابهارت دغسې حثیت لري . دادوی کیسې دار یایي ولس دعقایدو او ذوق محصول دي چې په زرګونو کالو تکمیل شوي او بیا د شاعرانو له خوا منظومې شویدي .

رامایڼ و رام (رام داش رتهي) ته منسوبه ده داحماسه د (رام چندر) دژوند ماجراده چې پر خپله مېنه (سیتا (مینې خو هغه (راون) نومي ځینې تښتوي رام پدې پسې رهي کیږي څو جګړې پیښیږي او (سیتا) بیرته راولي او (راون) وژني .

کله چې سیتا راولي پر هغې بدګمانه کیږي او شړي یې هغه (المکې) ته راځي او ګوښه نشینې غوره کوي . په دغه وخت کښې یې (کوشا) او (لاوا) زیږي . رام چې کله د داهلو کان وینې نو یقین یې راځي چې مایني یې خیانت نه دی ورسره کړی . نو (سیتا) بیرته کورته راولي خوهغه مري او (رام) نیت کوي چې پدې پسې به ځي او پردغه اورجنت ته رسیږي .[۱]

داحماسه اووه برخې (کاندا) لري او تقریباً تو له (۵۰۰۰۰) بیته کیږي دمهابهارت حماسه و (ویاسا) نومي سړي ته منسوبه ده بوټو له ۲۱۵۰۰۰ بیتو ته رسیږي .

په دې حماسه کې ددوو کورنیو (کوروان) او (ظوندوان) دځوانانو ترمنځ جګړه بیانیږي او دقدیم عرف او سننو ډېرې رنګینې پکښې پرتې دي . مثلاً د (دروپادي) (په داستان کې دروپاد) نومې شهزادګۍ چې د پنچال دباچا لوروه د پنځو شهزادګانو سره په یوه وخت کې واده کړیدی او له دې څخه نو په یوټا کلي وخت دفامیلي تکامل د (پولیګامي) [۲] تاریخ دورا ایسته کیږي .

داحماسي داستان هم دیو لړ شخړو او جګړو . قهرمانیو او پهلوانیو څخه مالا مال دي او څرنګه چې د عقیدې پر بنایي ترتیب عملي شوي نو دمقدساتو په جمله کې داخل شو او (ریشان) په مکلف وه چې دا په حافظه کې وساتي او په مخصوصو وختونو کښې به یې په عامو محضرو کې وایه .

دمهابهارت لومړي دتفر دشکونتلا [۳] په نامه دی چې (کالیداس) نومي شاعر هغه په سانسکرټ کې دیو تخیلي داستان په ډول منظوم کړاو نن دقدیمې زمانې یو دلچسپ داستان شمېرل کیږي .

دسانسکریټ ادبیاتو لهٔ ډېرو غنې ذخایرو څخه شکونتلا (ورکه شوې ګوتمې) یو داسې داستان دی چې دقدیم هندوستان داریایي کلتور خوراډېر مظاهر پکښې پراته دي .

[۱] اوریانیشاد ۵۸۵ مخ [۲] پولیګامي

[۳] اوریانیشاد تهران ده دار اشکوره پر ترجمه د داکتر تاراچند او جلالي نائیني تعلقات ۵۷۴ مخ

دا داستان چې په ډراماتیک شیوه لیکل شوی دی د سانسکریټ د معروف شاعر (کالیداس) اثر دی.
نوموړی منظوم ډراماتیک داستان د لومړي ځل لپاره له نن څخه یو سل اوا تیا کاله وړاندې یو انګلیس بیدا کړ او هغه ئې په انګریزي ژبه ترجمه کړ.

د کالیداس د ژوند پوره تاریخ معلوم ندی خو دو نه ویل کیږي چې هغه دوهم چندر ګت په زمانه کې چې په دبګر اماتیا معروف و اوسیدی او دا پاچا د ۳۷۵ څخه تر ۴۱۴ م پوري په شمالي هندوستان کې پاچهي کوله.

د هندوستان ادب پوهانو چې د کالیداس آثار لوستی دی نو وایي چې هغه په ویدا کې فلسفه او ادب کې ډیر پوه و او د معروفي حماسي (مهابارتا) څخه ئې خپل داستانونه اقتباس کړي دي او شکونتلا د ده هغه اثر دی چې په څرګند ډول د مهابارتا څخه را اخیستل شوی

دی او ده په خپل هنري استعداد هغه ته پالش ور کړی او یو ښکلی حماسي ډراماتیک آثر یی ځینې جوړ کړی دی.
د هندوستان معاصر معروف شاعر (رابندرانات ټاګور) د شکونتلا په باره کې وایي چې دا یواځې یوه باستانی حماسه نه ده بلکه یوه عمیقه فلسفه ده.

د المان معروف لیکوال او شاعر (ګویټه) وایي چې شکونتلا مطالعه زما د عمر یوه لویه حادثه ده. دا داستان اوه مجلسه دی چې د لومړي مجلس څخه عاشق او معشوق له یوه عالم څخه بل عالم ته پورته کیږي خو د کمال په اومه مرحله کې معنوي وصل ته رسیږي.
داستان که څه هم په ظاهره کې یو ددمینی او محبت زور از مایي ته شیلوي خو په معنی کې د هندویزیم د فلسفي اعماقو ته ځان رسوي او د مسایلو اوږ نه تقریبا آدنني سه بولیزم په شیوه په خاص و رموز اتوا ړوي.
دا اثر چې نن ورځ یې فلمونه هم جوړ شوي او څو کاله وړاندې یې د سینما بین المللی جایزه هم فلم وګټله لومړی په ۱۷۸۹ کښی اویلیام جاز انګلیس په انګریزي ترجمه کړه په ۱۷۹۱ کښی المانی فورستر او په ۱۸۴۰ کښی (جیزی) فرانسوی ترجمه کړه سربیره پردی سنزلر المانی او ویلسن انګریزي هغه په ایټالیایي او ډنمارکي ژبو واړو له اودا کلاسیک سانسکرت اثر ټوله اروپا وپیژند.
هندوستاني لیکوالو هغه په بنګالي او نورو محلي ژبو هم ترجمه کړی دی چې نن د هندوستان د بهترینو ادبیاتو په جمله کې ځای لري.
په دې ځای کې د دغو قدیمو داستانو څخه د (رامایڼ) د داستان یو لنډیز وړاندې کیږي ترڅو د داستان اصل تخیل یو څه درک کړای شو.
د (راجا دشرتهد) د سرورج بنني) د کورني یو لوی پاچا و چې د شمالي هند د (ایودهیا) په سیمه کې یې پاچهي کوله دې پاچا درې مایني درلودې چې یوه یې (کوشلیا) بله یې (سمترا) او دریمه یې (کیلشي) نومیدله.
له درماینو څخه راجا څلور زامن پیدا کړل چې یو یې (رام چند) بل یې (لکشمن) دریم یې (بهرت) او څلورم یې (شتروګن) نومیدی.
څرنګه چې د (کوشلیا) زوی (رام) تر نورو وروڼو مشر و نو راجا هغه خپل ولیعهد وټاکی او د (ګورو دششټ) له رواج سره یې جنګي مذهبي او د مملکتداری تعلیم ورو ښودی.
په یو بل ملک کې چې (مهتلا) نومیدی د راجا رانژدی (جهنك) د لور د سویمبر [۱] ورځی

---

[۱] سویمبر: په ذریعه زمانه کې داسې رواج و چې د پاچا لور به په شرط وادا کیده او د ملکو شهزادګان به را تلل او هرچا چې به شرط وګټی شهزادګی به د هغه وه.

کیدی او د شاو خوا ملکو د راجا زادګان په جمله کی د شورج بهنښی له کورنی څخه د راجا د شرتهه مشر زوی (رام چندر) او په هغه پسی (لکشمن) هم دغه سویمبر ته ور بلل شوی وه .

په سویمبر کی یوه کړی ځړول شوی وه چی په غشی باید ویشتل شوی وای نو کله چی (رام چندر) خپله کمانه کش کړه او غشی له هغی څخه ووت سم پر کړی ومونښت او پدی ډول رام چندر د راجا جهنك لور (سیتا) چی یوه ټلی پیغله وه او نوم یی پر وطنو پروت و و ګټله .

کله چی رام چندر سیتا و کړه نو د راجا یی مقام له پاره یی چانس تر پخوا څو چنده زیات شو

کله چی رام چندر کور ته راغی نو تر ټولو لومړی د کشری میری (کیکشی) حسد او دښمنی ور سره پیدا شوه او هغی زیار ایستی چی د دې زوی (بهرت) د پلار پر ځای کښینی .

د هغه وخت له دود سره یو داو چی راجا باید یو زوی و ځنګله ته د عبادت له پاره ولیږی نو د (کیکشی) په تحریك راجا د شرتهه مشر زوی (رام چندر) په دغه وظیفه مکلف کړ . رام چندر هم د پلار امر و مانه او خپلی ماینی (سیتا) او کشر ورور (لکشمن) سره ځنګله ته ولاړ او د هندوستان په ځنګلو کی پسی ورك شو .

د دغو دوو زامنو له فراق څخه راجا د شرتهه په ستر ګو ړوند سو او بیا پسی مړ شو .

د پلار تر مړینې وروسته د (کیکشی) زوی (بهرت) چی یو انصاف داره ځوان و د راجا حق یی د (رام چندر) و باله او پخپله یی له دغه مقام څخه انکار وکړ او د ولسی مخورو په ملګری په رام چندر پسی ځنګلو ته راووت په سلهو پر وخت څخه دوی د چتر کوټ په غرو کی سره پیدا کړل او (بهرت) له ده څخه وغوښتل چی د پلار مقام واخلی خو رام چندر قبول نکړه او بهرت ته یی وویل دا کار دی ستا روزی شی . تر دې وروسته بوره دیرش کاله رام لکشمن او سیتا

په دغه ځنګله کی وه څو یو وخت د (لنکا) راجا (راون رام) چی د سیتا د ښائست آوازه ئی اوریدلی وه له رام چندر څخه وتښتووله .

رام چندر له [پنج وټی] څخه د خپل دوست قوم (بانر) د کورنی د مشر (سګریو) او د هغه د سپه سالار (هنومان) په مرستګری لنکا ته ولاړ او د راجا راون رام سره یی جګړه وکړه په جګړه کی یی هغوته ماته ور کړه او رام چندر بیرته خپله ماینه سیتا راوسته راجا یی مړ کړ او پاچهی یی د هغه ورور (ببهیکشن) ته وسپارله او چی بیرته خپل ملك ته راغی نو بهرت دایو د هیا حکومت ده ته ور حواله کړ [۱] .

## دری حماسه

### دفردوسي شاهنامه

د نړی په ډیرو معروفو داستانو کی چی عالمی شهرت لری یو هم د فردوسی شاهنامه ده چی د غزنوی د دربار د هنرخیزه دوران محصول بلل کیږی .

شاهنامه هم لکه ایلیاډ او اوډیسه . راماین او مهابهارت د یو شمیر کیسو مجموعه ده چی داستانو نه یی ټوله دار یا یا نو د پهلوانی او تاریخ څخه سرچینه اخلی .

وایی چی فردوسی لومړی د دقیقی طوسی ګرشاسپنامه ولیدله او دې لپاره چی هغه تکمیل کړی نو کومی کیسی چی په ولس کی موجودی وی هغه یی راټولی کړی او په نظم کی یی واچول شاهنامه په دری ژبه منظوم شوی او ۶۰۰۰۰ بیتونه یی شمیر رسیږی .

د شاهنامی په کیسو کی د ۳۶۰۰۰ ق م څخه نیولی بیا تر ۶۵۱ م پوری د افسانی [ ] او تاریخ څخه ترکیب یو شمیر ماجراوی بیانیږی [۲] .

---

[۱] رهبر تاریخ هند [۳۴ مخ]

دادبي څېړونو خاوندان وايي چې دا حماسه
دري برخو ته ویشل کیږي چې هغه عبارت له
افسانې. پهلوانۍ او تاریخ څخه دي.

د شاهنامې افسانې د هومر د ایلیاډ او هندي
افسانو سره شباهت لري. او تاریخي هم د واقعه
نګارۍ کمزوري لري خو کومه نجیبه برخه چې
په دغه لویه حماسه کې پرته ده هغه يې د قهرماني
او پهلوانۍ برخه ده.

د دغې برخې په کیسو کې د [شهراب] او
او [رستم] کیسه يې خاص شهرت لري او حماسه
يې هم په حقیقت کې دغه برخه تشکیلوي.

شاهنامه د نړۍ په ټولو ژبو ترجمه شوې ده
او د نړۍ په کلاسیکو ادبیاتو کې یو نجیبه اثر
شمېرل کیږي.

# الف ليله و ليله

## یو زر او یوه شپه یو کلاسیك داستان

دا معروفه کیسه ډېر قدیم تاریخ لري او د
ختیځو دربارونو حکایت کوي.

د تراوسه معلومه نده چې دا کیسه لومړی
څه مهال او په کوم ځای کې د چا له خوا جوړه
شوه خو څېړونو ژورو تحقیق کوونکو ویلي دي
چې دا کیسه د قدیم چین په ادبیاتو کې زېږېدلې
او له هغه ځایه هند ته او له هند څخه عربو او
له هغه ځایه د لویدیځ او ختیځ نورو سیمو ته
رسېدلې ده.

دا کیسه په لویدیځه نړۍ کې په ټولو ژبو
ترجمه شوې ده او په انګلیسي کې د [اربین نایټ]
یعني [عربي شپو] په نامه یادیږي.

کیسه په ډېره هنرمندۍ ترتیب شوې او د
ډېرو ځنځیر په ډول په یوه لویه سلسله سره تړل
شوې دي چې دا ټولې ۲٦۴ کیسې څېړني جوړېږي
په کیسه کې د یوه پخواني پاچا نکل دی چې په
مینه کښې يې فریب خوړلی و او ډېر بنځه يې
زړه غیرق نو ځکه هره شپه به يې د یوې نجلۍ
سره واده کاوه او په سبا به يې وژله.

په دې ډول پاچا ټوله ښار پیغلانې خلاصې
کړې او وروسته چې په ښار کې نجلۍ نه پیدا
کېده نو وزیر ته يې امر وکړ چې حتماً به یوه
پیغله ور ته پیدا کوې.

وزیر هم هو کې وویل او خوابدی کور ته
راغی. وزیر یوه ډېره هوښیاره لور درلوده
چې [شهزاده] نومېده هغې دې کار ته ځان
چمتو کړ.

او ماښام چې د پاچا حرم ته ورغله نو خو ډېرې وروسته
د خوړیې د پاچا څخه اجازه واخیسته او یو نکل يې شروع
کړ او دا نکل دومره شیرین و چې پاچا تر سهاره
غوږ ورته ونیوی او شپه يې پیغله ونه وژله او د
هغې خور ته يې وویل چې د دې نکل پاته به
ماښام ته اوري. په دې دوهمه شپه د نکل پاته
بیا شروع شوه او پر یوه ډېر شیرین ځای نکل
نا تمامه پاته شو او سهار شو.

په دې ډول یو زر او یوه شپه دې نکل دوام
وکړ او پاچا هم خپل پخوانی عادت واچاوه
دا کیسه د نړۍ په کلاسیك ادبیاتو کې ډېر مقام
لري او په همدې منظور و چې شو کاله
وړاندې زموږ یوه پیاوړي لیکوال ښاغلي
نومیالي د هغه یوه برخه ترجمه کړه او د طلوع
افغان په پاورقي کې نشر شوه خو بیا دا کار پاته
شو او بل چا پسې تعقیب نه کړ

پای

# ادب باید د اجتماعی ژوند

## قتیل پروی

داچې د ژوندانه په ټولو شئونو کې ښکاره تحولونه او څرګند تغیرات راغلي دي علت ئې دادی چه بشري ذهنيت بدل شوی دی او د افکارو مجری ایشه شوی ده څرنګه چه ټول علمي او مدني نهضتونه د انساني دماغ محصول دی او دماغونه تل د تجدد، تحول، او انکشاف و خواته مایل دي، په اجتماعی لار و علمي او ذوقي حالاتو کښې هم بدلون راشي، انسان خو په لوی سر کې پر تجدد او تحول زړه بايللی دی تکرار او زاړه شیونه ئې زړه ور توره وی او تل پدی هڅه وی چه نوی مضمون ایجاد او نوی لوبه سازه کړی.

د نړیوالو په دماغونو کښې خو څو پیړیه د مخه تحول او انکشاف راغلی دی چه د غه دی

نن ورځ د خپلو علمي اختراعاتو په برکت د آسمان و سیارو ته وخیژی او د تاریخ په شاهدی سره د دوی د غه فکري او دماغي تحولونه لومړی د دوی په ادبي نثرونو کښې ښکاره شویدی، د اوروپا د تاریخي مطالعاتو څخه دا موږ ته څرګندېده چه د فرانسې د اتلسمې پیړۍ د لوی نهضت څخه څه پول رومانتیکی ښوونځی پیدا شو او دی نوی مکتب څرنګه کلاسیکی سبک له مینځه یووړ، نو اوس موږ ته هم لازمه ده تر هغه ځایه پوری چه زموږ اجتماعی ژوند او ملي شعایر د رعمولو حوصله لری په څېنو مدني او ادبي چارو کښې څه بدلون او تجدد راولو.

که موږ د ادب داسې تعریف و کړو چه د انسان د باطني خواهشاتو او تاثراتو مجموعه ده نو دا به ادب د پاره د ادب وی او که ادب د انساني ژوند د مظاهر و تصویر شي نو دا به اجتماعی ادب وبولو څرنګه چه ادب د پاره د ادب په بشري ټولنه کښې مصداق نه دی پیدا

کړی او تل د اجتماعی قدرتونو له خوا ادب استعمال شوی دی نو ځکه او سني نقادان هغه ته د اهمیت په سترګه نه ګوری او غندی ئې.

ادب چې د تاریخ په سیر کښې بیلې بیلې دوری لګه قبیلوی ادب، درباری ادب تصویری او دمین تا به ادب تیری کړی او څرنګه چه د غه ټول ادبي مسلکونه د زړی زمانې د ژوندانه د دودونو، او فکرونو ترجمان دی ځکه ئې په او سنی دنیا کښې چه د ترقی او تجدد زمانه ده خپل قیمت بایللی دی.

حتی د تصور او تخیل منابع او اساسات ئې بیخي له مینځه تللي او نابود شویدی په نننی مدنیت او ژوندانه کښې موږ نه شو کولای چه تیری سوی ادبي خاطری راژوندی کړو او دهغه مواد څخه چه لرغونو د ادب د ما نې د جوړولو د پاره په کار وړل موږ هم استفاده څېنې وکړو.

ځکه اوس د ژوند ټول اړخونه بدل شوی او د تصور او تخیل مجری هم سره اوښتي ده د مثال په ډول که اوس یو ادیب را او لاړ یوی په داسې حال کښې چه کوم ګران اشنائي دا لو تکي په ذریعه مسافرت ته ځي اودی دالو تکو په مکر کښې د خپل اشنای د خدای په امانۍ د پاره ولاړ وی او دا لو تني په حالت کښې دا شعر ووائی چه:

ای ساربان آهسته ران که ارام جانم میرود
آن دل که با خود داشتم باکار وانم میرود

ځوني به د خندا وړ خبره وی ځکه نه ساروان دلته موجودیت لری او نه کاروان داوښ پر ځای څوماشینه الوتکه ده او د سار و ان پر ځای یو مفشن طیاره وان څرنګه چه هر ادب د خپل عصر د ایجاباتو محصول دی او لکه چه موږ

(پاته په ۶۴ مخ کی)

ا محک

# سقراط او د قانون اطاعت

کم وخت چي د یونان پر مشهور پوهاند او پیاوړی فیلسوف سقراط بانـدی د ځینو مخالفتونو په اثر د «آتن» د حکومت له خوا د اعدام امر صادر شو د نوموړی پوهاند شاګرد دسهار له وخته بندی خانی ته ورغی سقراطته ئی وویل: استاده! ما زندانیان پدې سره چی ستا مماتعت ونه کړی راضی کړ یدی ته لدی ځایه څخه وبل پردی ښار ته ولاړ شه څو له اعدام څخه خلاص شی.»

سقراط تریوه متحیرانه تفکر وروسته چی خپل اتښدل ئی له بندی خانی څخه او داصول او قانون پایمال کول لازم نه ګڼل خپل شاګرد ته ئی داسی غبرګون ورکړی.

«دا ناهنجاره عمل یعنی زښت بد فعل چه ته ئی وما ته اسرار او ماد هغه د کولو ته مجبوره کوی خوراځ پر نقصانو نه اری چی زه ئی یو ل هغو څخه تاته وایم: زه پداسی وخت کښی چی له بندی خانی څخه بیله دحکـومت له اجازی او دا اصول او قانون د مقرراتو برخلاف فرار سم فرض ئی که چی د حکومت د اصول حقیقت دانسان په صورت شوی او له ما څخه سوال وکړی چی ولی دی د حکومت امر او قانون پایمال کړی ته هغه مخالفت کوی؟ مګر حکومت او قانون پر تا کم ستم کړی دی؟ که و وایم چی هو!؟ را ته وبه وائی چی ته مګر نه پوهیږی چی ستا حیات او ممات زموږ دی!

داقانون ؤچی پلار دی ستا مور په نکاح کړی او په نتیجه کی ته په وجود راغلی نو ته او ستا ټول اجداد زموږ او زموږ بندګان دی او یا را ته ووائی که کوم وخت ستا پلار تا کمة څپیړه ووهی او کمه ښکنځا در ته وکړی که څه هم بی موجبه وی نو آیا ته به دده په مقابل کی ودریږی د ښکنځا پر ځای به ښکنځا او د څپیړی پر ځای به څپیړه ووهی نو ته را ته ووایه چی زه به په جواب کی څه ووایم شاګرد ئی په داسی حـل کښی چی پر بڼه ئی پر خپلو خبرو باندی د پښی مائی نښی ښکاریدی دا ئی وویل ستا خبری حق دی آه افسوس لرم چی تا ناحقه وژنی او په ناحقه سره ئی داعدام پړګر ته کشول کیږی سقراط په ټینګر سره وویل ماخو تا ته وویل د حکومت او د قانون اطاعت مقدس دی او څښتنه زه پر ځان دالا زمه ګڼم چی ددې حکم د اطاعت پری په غاړه کښی څوړند کړم امادا چی ته وایی چی زه افسوس کوم چی تا ناحقه وژنی نو را ته ووایه چی آیا تا میل درلود چی ما پر حق مړ او اعدام کړی څو په نتیجه کی ئی شاګرد مایوسه شوی له زندان څخه راووت په دریمه ورځ دسقراط د مرګ محاکمه شروع شوی او دزهرو جام په وچیښل شو داوه دسقراط د قانون د اطاعت نمونه.

د ۵ مخ باته

## ادب باید اجتماعي . . .

په اوسنی عصر کی د توری په وسله سره د جنګ و میدان ته نه سو تلای دغه رنګه زوړ ادب هم زموږ ذوقی احتیاوی نه سی پوره کولای او موږ په اوسنی عصر کښی یوه داسی ادب ته ضرورت لرو چی هغه زموږ د اجتماعی ژوند او اوسنی حیات ترجمان او ښکار ندوی وی یا په بل عبارت باید زموږ د اجتماعی ژوند داسی پوره هینداره وی چی په هغه کښی موږ ټول خپل ځانونه ووینو او خپلی حقیقی بڼې و پیژنو او د اوسنی ژوند د مظاهرو څخه الهام واخلو..

ددې پر عوض چی د خیال مرغه د آسمان په ستورو کښی والوزی یا دسپوږمۍ سره دزړه خواله کوو ښه به داوی چی دیوه بزګر او خوارسړی په ژوند کښی داخل شو او د هغه د ژوند انځور تابلووی تصویر کړو یعنی له آسمان څخه باید د واقعیت وغولی ته راشوو سو چی هم ادب په اوسنی تعریف سره خپل مصداق پیدا کړی او هم به موږ په اوسنی عصر کښی خپله وظیفه پر ځای کړی وی که زموږ ځوان فکره ادیبان دا کار و کړای شی خودا به ددوی غټ بریالیتوب او لویه نیکمرغی وی .

ا-م کرزی

د تاریخ پاڼه

# سردار محمد ایوب خان څوك ؤ؟

سردار محمد ایوب خان د امیر شیرعلی خان

دوهم توریالی زوی ؤ کله چی انگریزانو دوهم ځل

دپاره پر افغانستان حمله وکړه په هرات کی حاکم ؤ دا بهادر سردار چی ۲۲ کلن ؤ دانگریزانو په مقابل کی دوطن دساتنی

دپاره په دلاوری وجنگیده کله چی په ۱۸۷۹ع کال کی د جنرال (پدریکگ رابرتس په مشری ۶۴ زره انگریزی لښکر د پارچنار له لاری پر کابل حمله وکړه او د اکتوبر پر ۲۱ ئی و نیوی دده د پلار لښکر د کابل څخه شمالی خواته ماته وکړه او پښتانه لښکر سره آیت او پرك شول خو د

افغانستان غښتلی اووطن دوست ملت دهری خوا څخه دمتجاوزینو مخه و نیول مشرقی، جنوبی، غزنی، قلات او د پښتنو په نورو برخو کی پښتانه زلمی دانگریز د لښکرو سره په مرګ جنګیدل څرنګه چی د پښتنو ددوهم جنګ په کتاب کی چی په

لندن کی په سنه ۱۹۰۸ لیکل شویدی ددې سردار مړانه داسی یادوی :

سردار محمد ایوب خان په ۱۸۸۰ سنه کی دهرات څخه دغزا او جهاد په نیت لښکر د کندهار په لور راوخوځیدل دجون د میاشتی په اولو کی کندهار ته راوسیدل او دده سره دغه منظمی قواوی وې :

[۱] د تاجك تاج محمد خان غنډ دری کابلی کنډکه هر کندك ۵۰۰ نفره ټوله ۱۵۰۰ نفره

[۲] دسیدال خان پیاده غنډ ۳ کابلی کنډکه او یو کندهاری کنډك هر کنډك

۵۰۰ نفره ټوله ۱۵۰۰ نفره .

[۳] د تاجك غفور خان پیاده غنډ ۳ هراتی کنډکه هر کنډك ۳۶۶ نفره ټول ۱۰۹۸ نفره.

[۴] دعبدالرحمن سپور غنډ ۳ کابلی کنډکه یو کنډك ـ ۳۰۰ ـ نفره ټول ۹۰۰ نفره.

[۵] د کابلی احمد ګل خان په افسری یوه توپخانه چی یوه غاطری غرنی بطری جمله ـ ۱۰۰ نفره او څلور دښتی د آسانو بطری چی هره بطری ئی ۱۰۰ نفره ټوله ۴۰۰ نفره غیر منظم هراتی اودرانی سپاره دمحمد یوسف خان



سردار محمد ایوب خان غازی دمیوند توریالی فاتح

او د کابل نادر شاه غازي مشرانو تر اداره لاندې ټول ۲۰۰۰ نفره په دې ډول سردار محمد ایوب خان د ۴۱۰۰ پیاده ۹۰۰ سپور و ۵۰۰ نفره توپخانه ده ګ رود څخه راپورې وتل ځرنګه چې کپتن (کاسلې) د میرزا محمد اکبر خان څخه چې د سردار د لښکرو د لوازم مدیر و داسې اطلاع

اخیستې شوې وه چې دوی د ۳۴ آسي دښتي توپونه ۶ غاطرې کوهي توپونو پنځه کنډکه مسلح کابلیان د انګلیسي توپکوسره او یو ۵۰۰ نفري کندهاري کنډک او ۳ هراتي کنډکه د ۲۳۶ کندهاري توپکوسره چې د دوی سره د ګرشك په حدودو کې شل زره نفره نور غازیان ملګري شول.

د دې قواؤ عمومي قوماندان لوی ناب خوشدل خان ؤ میر محمد خان غزني مشر حفیظ الله خان لوګری سلیما خیل تاج محمد خان غلجي د نورو افسرانو سره چې د سردار خاص مشاوران وه.

په دې وخت کې د کندهار ښار انګریزانو نیولی ؤ او د انګریزانو د لښکر و عمومي قوماندان جنرال (پیوروس) ؤ او د دې جنرال تر اداري لاندې ۱۵۶۸۶ نفره لښکر چې د افغانستان په جنوبي حصه کې وه د جنرال پیوروس غزني مشر پر ۲ د جون د میوند ته واستاوه چې د هغه سره ۵۷۶ سپاره ۶۸۰ آسه چې د دوی افسران ډګرمن (کیودې) او کلنل (مالکمسن) وه دوهمه ډله توپخانه ۹٫۰۹ نفره ۱۱۹۱ کسه ۱۲ توپه د ډګرمن (بلیك وډ) او کپتن (سلو) د سره واستول دوهمه دسته پیاده د کلنل کلرټ په مشري چې د ۵۱۶ پیاده انګریزي عسکر سره او ۱۲۷۳ پیاده انګریزي عسکر چې د جنرال بورس قوا په دې ډول ۲۵۹۹ نفره ۲۷۴۹ آسه او ۱۲ توپونه رسیدل دوی د میوند په میدان کې د پښتنو غازیانو سره په ۱۸۸۰ کال د جولائي پر ۲۸ مخامخ شول.

په دې جنګ کې د پښتنو لښکر د انګریزي لښکرو څخه لږ اسلحې درلودې د ډیرو غازیانو څخه توري سوټیان وه دوی په ډیره میړانه د انګریزي متجاوز لښکرو ته سخته ماته ورکړه.

✻✻✻✻

## ملاله څوک وه؟

ملاله یوه پښتنه بهادره دلاوره پیغله وه چې په دې جنګ کې ئې تاریخي نوم ګټلی دی که چیرې پښتانه د انګریز د مسلسلو توپو د فیرو څخه په خاوره اوونو کې لغښتل او نږدې وه چې پښتانه ماته وخوري په دې وخت کې ملاله چې د پښتنو لښکرو سره په لومړي صف کې جنګیدل

ملي غرور او د پښتنو الي احساسات ئې په جوړ راغلل او پښتانه ځوانان ئې په سوځنګو لنډیو د دښمن په مقابل کې پر غیرت راوستل د ملالې بهادري پیغلې لنډۍ دا ده:

که په میوند کښې شهید نشوې
خدای ږو لالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه



د ملالې په یاد

غازیانو چې د دې بهادري پیغلې داغیبي ملکوتي لنډۍ تر غوږو کیدې لکه زمري د خپل ننګ او ناموس د ساتلو د پاره پر دښمن و ټپیدل، دا جنګ د سهار څخه تر ماپښینه پورې دوام درلود.

د انګریز لښکرو د ډیر سخت مقاومت سره ماته وخوړل او د کندهار پر خوا تر شاه راغلل او د میوند میدان فتح شو په دې جنګ کې ۱۲۵۰ نفره پښتني لښکر او ۸۰۰ نفره پښتانه بهادر داو طلب ځوانان په شهادت ورسیدل او د دښمن تلفات ۲۱ نفره انګریزي مقصبداران مړه [نور په ۱۰ مخ کې]

منطقي

# تجر بوی علوم

امان الله «احمدی»

د تجر بوی علومو موضوع دمادی عالم او هر هغه شی چه تجر بوی علوم باندی اتکا لری دما دی څخه عبارت دی .

کله چې د صوری منطقو مؤسس ارسطو خپل اورگانون نومی کتاب دمنطقو په باره کی ولیکی او دلمړی پلا د پاره ئې د منطقو علم چه د مخه دفلسفی سره گډ او دجدل مناقشې او سفسطې په عنوان باندی مطالعه کېدی دفلسفی څخه جلا کی نودا کتاب تر شپاړسم قرن پوری دمراجعې او دتفکر محل وگرزیدی وختی چه بیکن او «دکارت» معروفو عالمانو ظهور وکی دیوه طرفه دا ستهشاد اصول بد تاثیر .



دکارت

پر کړی او ځینې متنفر شوی او دبل لوری ور ځرگنده سوله چه یوازی ددی منطقو غایه دمعلومو مقدمو څخه دمجهولو اصولو کشفول دی او ځنگه چه داقواعدد ټولو علومو د پاره کفایت و نه کړ نوئې و یله چې

باید نوی او پوره دساتیر په منطقو کښی وضع شی چې دتمامو علومو په مختلفو موضوعاتو کښی تطبیق او و یوی معینې موضوع ته مخصوص نه شی نو دغه خبره ده چې بیکن خپل دری گونی لوحی دحضور غیاب او درجه په نومونو وړاندی کوی او دکارت د استقصا اصول چې بداهت ئې ډېر اهمیت پیدا کړی

وما بین ته راوړی او په همدغه وخت کښی دستوارت میل دطرفه دبقایا، تخالف، مترافق او تحول اصول وضع کیږی چې دبیکن لوایح ورتائیدوی .

په تجر بوی علومو کښی دوه دستورونه چې اکثره وختونه په کار باندی لویږی تحلیل او ترکیب علمونه دی چې پدی دستورونو کښی دکارت له خپل مهارته څخه کاراخیستی دی او دده زیار او کوښښ وو چې ددغو علمو په ذریعه ئې د استنتاج اصول له مابینه وړی او خپل ځان او بیکن ته چې علمیت ئې پر

بداهت مشاهده او تجر به استواردی دئو پرنوم گټل وریه نصبت کړه که څه هم له دوی چېه نورو عالمانو ځینې نوری قاعدی هم کشف کړی دی خو مگرد دوی قاعدی دستاینې وړ او دهر چاد قبول مورد گرزیدلی دی .

علاوه پردغه ددی دوو قاعدو د اختلاطه څخه عالمانو ځینې داسی نور پرنسیپونه وما بین ته راوړی چې نن ورځ د تجر بوی علومو دموضوعاتو د اثبات او تطبیق دپاره پوره کافی بلل سوی او ددغو په واسطه تجر بوی علوم په کامیابانه ډول ومخ ته وړل کیږی.

په پورتنیو لیکو کی دا وویل شوه چې دتجر بوی علومو سرو کار مشاهدی تجر بې او یامادی سره دی او هر هغه علم چې دروح او ذهنی فعالیت سره سرو کار لری غیر تجر بوی علوم شمیرل کیږی پس نو پدی صورت دتجر بوی علومو غایه دحوادثو په مابین کی دقوانینو کشفول او څه اصول چې په تجر بوی علومو کښی په کار لویږی فرضیه تجر به او مشاهده ده.

مثلاً یو عالم چی په هوا کښی دیو شی وایله کیدو ته متوجه کیږی دی دیو شی را کښته کیده او ایله کیده خامخا د فرضیی تجربی او

مشاهدی له نقطیه نظره مطالعه کوی او د اعلم او لې تصور چی د یوی حادثی په باره کی ئی کوی فرضیه

عرضوی او چی د یوی حادثی وموضوع او شکل ته ئی تغیر ور کړی نه ی د مشاهدی

حالت چی موضوع او شکل تغیر وخوری د تجربی حالت ئی بولی مثلاً که وو ایو چی

او به مرکب دی فرضیه، او چی لا تجربه سوی نه وی مشاهده او وختی چی تجربه ئی کی نو د تجربی

حالت اختیاروی پس او به خامخا د تجربی ورو سته چی پر هیدروجن او اکسیجن

وویشلی سوی د هغو وموضوع او شکل ته تغیر ور کړ شو ا نو مرکب په ثابته او واجب په ممکن وا ړول

سو بله قاعده چی په تجربوی علومو کښی ور څخه کار اخلو د استقرا اصول دی

چی د جزئی قوانینو څخه موو کلی قوانینو او یا و یوه کلی مفهوم ته کشوی او داځکه چی لمړنی نظام پر اخ او وسیع او مشاهدی او تجربی ته رجلو لاندی راتلای

نه شی نو ځکه فرضاً د ځینو حوادثو له مابینه یوه کلی رابطه او مثبت فکر را او باسو ځینی له حوادثو څخه مطالعه کو د هغه د صحت د اثبات د پاره یوازی د هغو څو

حوادثو په مشاهده او تجربو کولو اکتفا کوو مګر د ا اصول

موږ اکثره وخت د غلطیو سره مخامخ کوی چی هغه کلی قانون چی له څو حوادثو د لیدلو څخه راپه بر څه کیږی پر هغو ټولو د تطبیق قابل نه دی مثلاً پخوا خلقو چی تمساح لیدلی نه ؤ نو ئی د ځینو حیواناتو د شخوندو هلو

څخه یو کلی قانون را ایستلی ؤ چی ټول حیوانات شخوند وهونکی دی مګر وختی چی تمساح ئی ولیدی د دې کلی قانون د غلطی سره مخامخ او پر هغه نه تطبیق سو.

پس د دې نقیصی د اصلاح د پاره باید تجربی متعددی او د هغه د عکس څخه کار وا خیستل شی څو چی پر حقیقت موفق او مثبت شی فکر را حاصل شی.

(د ۷ مخ پاته)

سردار محمد ایوب خان...

۸- زخمیان ۱۳۰۳ نفره مړه د (۱۷۵۵) نفره زخمی ۳۰۱ آسان مړه او د د ښمن د ساحی تلفات ۱۰۰۰ تو پکه ۷۰۰ کر یچه ۶۶۱۰۰۸ ګولی ۴۸۷ اوښان - ۶۷۶۱ - یا بو ګان ۵۵۳ غاطری ۴۴ غوائی ۷۹ خره ۲۵۵ ترانسپورتی عمله د دی کتاب په ۴۸ صفحه کی د اسی راوړل شوی دی د هندوزیر په سنه ۱۸۸۱ د مارچ پر ۳۱ د دی جنګ مصارف د انګلستان و پارلمان ته پدی ډول وړاندی کړل چی ۱۸۸۱ کال د می تر ۳۱ پوری ټول د دی جنګ مصارف ۱۹ ملیونه ۵۰۰ پنځه سوه پونډه او ۳ نیم لکه هندی کلداری وی.

مترجم م (مېن)

د ۱۱ مخ باته

پطرول څرنګه...

لری او په عراق کښی هم د تیلو چینی سته چی د تلو نو په واسطه د روم بحیری ته یوول کیږی، په سعودی عربستان کی هم تیل سته چی د استخراج کارئی د یوې امریکائی په تصرف کی دی.

بیله د غو ځایو څخه ذکر شول برما او اندونیزیا هم د تیلو چینی لری جاپان لږ تیل لری او خپلی احتیاوی ئی نه پوره کوی.

استرلیا تیل نلری او په افریقا کی هم د تیلو ذخایر چندانی په زړه پوری نه دی بیله مصره څخه په عمومی نظر د تیلو صادرونکی ممالک مکسیکو، اندونیزیا، جنوبی امریکا، ایران، شوروی اتحاد

برما دی او هغه مهم ممالک چی تیل وارده وی انګلستان هندوستان، کاناډا او اروپائی ممالک دی.

له انټر مدیت مګز نسل جیو ګرافي څخه

مترجم عبدالباري

# پطرول څرنګه پیدا کیږي

دپطرولو معدن لکه دډبرو سکاره اکثره په رسوبي غونډیو کې پیدا کیږي .

دپطرولو دجوړیدو منشا تر اوسه پوري یوه اختلافیه مسئله ده بیاهم دډیرو معدن پیژندونکو نظریه داده چې دنباتي موادو ذخایرو څخه تشکیلیږي نباتي مواد چې تر ریګو لاندې شي نو پسله ډیره وخته دتیلو معدن ځینې تشکیلیږي پسله هغه چې دتیلو معدن کشف سي دستي داستفا دې وړ نه دي بلکه دغه معدني مواد په فابریکو کې تر تصفیې لاندې نیول کیږي او له هغه څخه علاوه پر پطرولو ډیز ل ډیزل او دتیلو نور اقسام جلا کیږي .

دپطرولو فائده چې یو ځای لږ نیسي او بل ماشین پاک ساتي او نه ئې خرابوي او حمل نقل ئې هم نسبت و سکرو ته اسانه دی حال دا چې دډبرو سکاره دا صفات نه لري .

سربیره پر دغه هغه مواد چې ددوی د تصفیې څخه لاس ته راځي هر یو ئې پخپله ډیر اهمیت لري مګر نقص او عیب ئې دادی چې دتیلو د معدن تشخیص او استخراج نسبت د سکرو و معدن ته ډیر زحمت او زیات مخارج غواړي او حتی جیولوجستان او معدن شناسان هم نسي کولای چې په تراد هغه صحیح مقدار تعین کړي څکه ډیر داسې واقع شوي دي چې د تیلو چینه پسله لږ مودې څخه وچه شوې ده بل عیب ئې دادی چې دپطرولو ساتل نسبت د سکرو ته ډیر احتیاطه غواړي ولې چې اور او به چې دژوند دضروري احتیاجاتو څخه دي دپطرولو قوي دښمنان دي او به ئې ماهیت ته تغیر ورکوي او اور ئې سوځي او بربا دوي يې .

## دنړۍ دتیلو مهمې چینې

دمخه تردې چې دتیلو داستخراج مهم منابع وپیژنو باید پوه شو چې بیله شوروي اتحادی او جاپان څخه چې په خپله ئې تیل نه کښلي دي د نوري ټولې دنیا تیل د امریکا، انګلیستان او لږ د فرانسې په سرمایه راکښل شوي دي او پخپل وخت کې ددغه کار دپاره دری لوی شرکتونه کار کړي دي لکه سټینډرډ ایل کمپنۍ دا تازوني په سرمایه او رایل ډچ شل کمپنۍ دانګلیستان او هالینډ په سرمایه او انګلو ایرانین کمپنۍ دانګلیستان په سرمایه .

## دتیلو منابع په امریکاکې

په امریکا کې دتیلو داستخراج علاقې خورا ډیری دي چې یوازې د اظلاع متحده دتیلو دمنطقو تعداد شپه دپاسه و ۷۰۱۶ ته رسیږي علاوه پر دغه په مکسیکو کاناډا او جنوبي امریکا کې هم دتیلو چینې سته .

## اروپا

اروپا په عمومي نظر بیله روسې څخه په پطرولو کې فقیره ده یوازې دتیلو مخزنونه په پولینډ او رومانیا کې سته په جرمنۍ کې هم لږ پیدا کیږي او انګلیستان ئې نه لري روسیه په اروپا کې ډیر تیل او زیات ذخایر لري او پسله اتازوني څخه په تیلو کې د دنیا دوهم درجه هیواد دی مهمې چینې ئې په باکو کې چې د شوروي دبحری بندرو څخه ئې دداخلي مصرف یا خرڅولو دپاره صادروي .

## آسیا

په آسیا کښې د جنوبي ایران (آبادان) تیل لري چې په منځني شرق کښې ډیر اهمیت

(پاته په ۱۰ مخ کې)



«ا ر ش. د»

# کوښښ

شیوه د سعیې په ژوند کښې له دربار ه زده کړه
بې ثباتي ددې جهان هم له حبابه زده کړه
په سر کې شور په زړه کې اور دستر ګې له اوښکو ډ کې
رنګ د طوفان لرل له موجه د سحابه زده کړه
په سوز ګډ از کښې تبسم له حال د شمعې ځنې
د خار اوخس په جفا صبر له ګلابه زده کړه
اسره د ګل کاندې هغه چې سوز د عشق نه لرې
مزه دمینې د پتنګ د عشق له بابه زده کړه
پېښو ته تن ور کول زړه لکه سندان نیولې
سر ګرداني په دې جیحون کې له ګردابه زده کړه
ژړا فریاد د زړه له اوره لا لمبه زیاتوي
په ښه دقیق نظر دغه راز له کبابه زده کړه
په کوښښ نه شي میسر خاوري دیار د پښو
نارسایي دلته د زلفو له طنابه زده کړه
هلته به وصل شي مراد ته په اسانه سره
که تواضع دې په رفعت کښې له رکابه زده کړه
چې همت لوړ وي وړو کتو ب مانع د سعې نه شي
داعتلا راز د ذرې له ډیر شتابه زده کړه
تنهایي نه ګرځي مانع دارتقا د پاره
په یک تنها صورت شاهي پاس له آفتابه زده کړه ⑨

منثور شعر

پوهنوال رشاد

## دزړه و نوغل

آه دزړه و نوغله!!! ته تل په تورو تیارو کی کو ګلو نه لو ټوی څکه دی دزړه و نوغل بولم ..
داسو ځ زړه می څه کاوه ؟؟ په دردمی نه خوږیږه ؤچی یودی وی!!!
اماویش ته آیروتلی !! څکه چی تاخپل ټول ژیار دخوشومړو وینودیوه ساړه غټی
په غلابا ندی ولګاوه- ولاړ رنګ بهدی پری بدشی -
تش دومره شو چی ستا دوړوزړو په امیل کښی لی یو شمیرزیات کړ نورنو هیڅ توبش او رنګیږغی نه لری .



کله چی په هغه خوشی مړه زړه پسی ګرزیدم دشپی په تیاره کښی پریوه تاووده ژوندی اوله سوزه ډک زړه پیښ شوم یقین لرم چی دا به هم ستا څخه لویدلی وی څکه چی دهغه دیواله سیوری ته غلی پروت ؤ چی پرڅو کهلی ستا د پښو کرښی دوراغرکی .

آه دزړه و نوغله!!!
ستادی وی که به دار اڅخه غلا کوی برما ډیر ګران دی، ستادی وی ستادی وی!!!

## افکار

دسړی دلیاقت ښکاره کیده لکه میوه خپل موسم لری .

«لاروشفو کوله»

تجربه یوه ګرانبها سرمایه ده پهدی شرط چی کارځنی واخستل شی .

«لامون»

ترهغه بل بدبخت ترڅوک نشته چی په ژوندکی هیڅ کله په کومه بلا اومصیبت نهوی ګرفتار شوی.

«جرمی تیلور»

بدبختی د ناتوانی څخه نده بلکه د نه ارادی څخه ده

«ویکتورهوګو»

ډیره کوچنی واقعه موږ دډیر لوی حقیقت سره مخامخ کوی .

«دکترماردن»

که انسان خپل نفس یا پرونی اوسبالی غمو نه پرځان باندی کوی ټهنګړی پهژوند کښی چی هربار ته اوږه ونیسی په آسانی سره ئی تحمل کولای شی .

«هامرلینګ»

نیکی یو داسی شی دی چی ترهرڅه دمخه خلک خلع سلاح کوی .

«لاکوردر»

قهرپه لمړی سرکښی لیونتوب او په آخر کښی پښیمانتیاده .

«منوچهر»

صحرا دغم شوه راحت ګاه دلیونو د یاره
راحت دځان همیش دعقل له ذها بهزړه کړه
ویښتوب په ژوندکی شی بلا راحت له خلکو یوسی
پهدی جهان کښی اسایش راشه له خوا بهزده کړه
نیاز دزړه دلفظ له نازه مستغنی ښکاریږی
په ټهخوله راز دمعنا ؤ له کتا بهزده کړه
هره خبره چی لهزړه نهوی اعجاز ګانه شی
اثر دشعرد ویلا له آب وتا به زده کړه

د عبدالحمید عبدالله په قلم　　　　　　　　　　　　مترجم أجیب

# محمد عبدالغفار الهاشمی الحسینی القندهاری

هو حضرت الاستاذ الفاضل المحترم استاذ اللغة الافغانیة و الفارسیة وخریج الجامع الازهر الشریف السید الشریف [محمد عبدالغفار] الهاشمی الحسینی الافغانی المولود فی [۱۳۲۵ﻫ] بمدینة [قندهار] بافغانستان وقد اشترک فی جهاد الاستقلال فی [۱۳۳۷]ﻫ ثم الثورات الداخلیة من [۱۳۴۵-۱۳۴۹]ﻫ ثم اتخذ العلم طریقا وارتحل الی الهند فی [۱۳۵۱]ﻫ ثم الی بغداد والشام وفلسطین ودخل مصر فی [۱۳۵۵] ﻫ فی الجامع الازهر الشریف وتفرغ للتحصیل ثم اخذ الشهادة الاهلیة العلمیة الازهریة فی [۱۲] من شهر شوال سنه [۱۳۵۶]ﻫ ثم توجه الی تألیف الرسائل العلمیة المختلفة ثم اخذ الشهادة العالمیة الازهریة فی [۱۳۶۲]ﻫ فانتدبته مشیخة الازهر لتدریس اللغة الفارسیة باصول الدین وهو ابن السید محمد ولی الله الهاشمی [۱۲۶۷-۱۳۳۰]ﻫ وکان وزیر الحرب للامیر محمد ایوب خان فی غزوة [قندهار] ثم هو ابن السید محمد جمیل الله [۱۲۵۷-۱۲۶۵]ﻫ ابن السید محمد حمید الله امیر المدینة المنوره فی ثورات عصر الشریف (غالب) امیر الحجاز وهاجر الی افغانستان وسکن ببلدة (کنر) واستشهد فی الجهاد (بخورد کابل) فی سنه [۱۳۵۸]ﻫ

ترجمه :

## محمد عبدالغفار الهاشمی الحسینی القندهاری

فاضل استاد او دازهر د جامع د پښتو او فارسی ژبی ښوونکی محمد عبد الغفار الهاشمی الحسینی القندهاری په ۱۳۲۵ ﻫ کال د افغانستان په کندهار کښی زیږیدلی دی په ۱۳۳۷ کال کښی دافغانستان د استقلال په جګړه او په [۱۳۴۵-۱۳۴۹]ﻫ کال کښی ئی د هغه مملکت په داخلی انقلابو کښی برخه اخیستی ده بیائی دعلم وتحصیل ته ملا وتړله په [۱۳۵۱]ﻫ کال کښی هند ته او پسله هغی بیا و بغداد-شام او فلسطین ته ولاړی په [۱۳۵۵]ﻫ کال کښی مصر ته راغی او دازهر و جامع ته داخل شو د [۱۳۵۶]ﻫ کال دشوال پر دولسمه ئی دالاهلیه العلمیه شهادت نامه واخیستله په دې وخت کښی ئی دمختلفو علمی رسالو تألیف ته توجه وکړه په [۱۳۶۲]ﻫ کال کښی دالعالمیه الازهریه بری لیک واخیستی په [۱۹۶۴]ﻫ کال کښی دازهر د جامع د فارسی لغات د اصول دین استاذ شو پلار ئی سید محمد ولی الله الهاشمی نومېدی چی په [۱۲۶۷-۱۳۳۸]ﻫ کلو نو کښی دمیوند په غزا کښی دامیر محمد ایوب خان د حربیی وزیر و نیکه ئی سید محمد جمیل الله [۱۲۵۷-۱۲۶۵]ﻫ او ورنیکه ئی سید محمد حمید الله نومېدی چی د مدینی منوری امیر و او د حجاز دامیر شریف غالب د انقلاب په وخت کښی ئی وافغانستان ته هجرت وکړ او د هغه ملک د کنړ په ښار کښی ئی استوګنه غوره کړه چی په [۱۳۵۸]ﻫ کال کی د (خورد کابل) په جګړه کښی شهید شو.

(نور په ۱۶ مخ کی)

د نظام الدين (بركى وال) څېړنه او ليكنه !

# سوفسطايان څوك وو؟

په پخوانی یونان کی یوه ډله فلاسفه اوسېدل چې نه ئې کوم تشکیلات لرل او نه ئې مکتب او مدرسه درلوده چې کوم اساسي کړ نلار دې ولري. دا فیلسوفان د سوفسطا یانو په نامه یادېدل په یونانی ژبه کې (سوفیسما او سوفیزا) د تعلیم او زده کړې معنی ورکوی او د (سو - فوسل) کلمه هم د عقل او پوهې په معنی راغلې

دې فلاسفه وو چې سوفیست نومېدل د سقراط او افلاطون څخه ئې مخ کې ژوند کاوه چې مکتب ئې یو څه وروسته د (سوفیسم په نامه یاد شو.

د (سوفیست ) کلمه په پخوانی یونان کی لمړی ځلې د یوه سړی حکیم او مخصوصاً فیلسوف باندې اطلاق کېده او دا کلمه د یوه ارزښت او اعتبار علامه وه څوك چې به په دې نامه یادېدل نو ډېر احترام او قدر به ئې تر څو به خلکو ورته کتل.

خو څرنګه چې سقراط او افلاطون منځ ته راغلل د سوفسطا یانو حالت او حیثیت د بحران سره مخامخ شو. په دې ډول چې سقراط او افلاطون پر دې د تعلیم په مقابل کی د خلکو څخه د معاش او مزد اخیستلو په هکله سخت انتقادونه وکړل او د دوی د اعتبار او حیثیت په ورانولو کې ئې موثر او با ارزښته رول ولوباوه نو هم د غه وو چې وه چې سوفیت خپل پخوانی اعتبار له لاسه ورکړ او وروسته تر هغې د (سوفیت ) کلمه د خلکو د تحقیر لپاره استعمالېده او په هغو کسانو به د (سوفیست) اطلاق کېده چې د مغالطې او سفسطې له لیارې به په بحث او خبرو کی پر مقابل لوری بریالی کېدل.

د سقراط او افلاطون مخالفت د سوفسطا یانو سره په دې ټکی کی و چې د سوفسطا یانو به د تعلیم او تربیې او د علم او فلسفې د زده کړې په مقابل کې د خلکو څخه اجوره او پیسې اخیستې. افلاطون او سقراط به وېل چې علم او پوهه د خرڅلاو د پاره نه ده او باید خرڅه نشي.

سوفسطایان چه نسبت و نورته پوهان او عالمان وه په ښارونو کې به ګرځېدل ترڅو چې شاګردان پیدا کړی او د پیسو په بدل کې علم و رزده کړی، خو د هغو نی مخالفینو به وېل چې دا کار په پای کی علم او فلسفه دا شراف او ثروت د خاوندانو په انحصار کې راولي نادار او متوسط وګړی د هغو د زده کړې څخه محروم پاته کېږی.

د سوفسطا یانو څخه لمړنیو فلاسفه وو خپل وخت د طبیعت او آسمانو او ستورو او د ځمکې د کری د موجوداتو په تحقیق پر ته دانسانانو څخه تیر اوه خو د و همه ډله فلا سفه چې سوفسطایان وو خپله توجه ئې د کائیناتو څخه وانسان ته معطوف کړه، لکه څنګه چې پروتاګوراس چه د پنځمې پېړی له فلاسفه وو څخه دی له لمړنیو سوفسطا یانو څخه شمېرل کېږی دی وائی چې انسان د ټولو اشیا و و مقیاس دی.

دریمه ډله فلاسفه له سقراط، افلاطون او ارسطو څخه عبارت دی دوی کوښښ وکړ چې طبیعت او انسان دواړه په یوی کاملې فلسفې دستګاه کې سره راغونډ کړی او د دواړو روابط وڅېړی.

په عمومی ډول سوفسطا یان له هغو فلاسفه وو څخه عبارت وو چې نسبت وخپل زمان ته خورا پرمخ تللی وو او د عقل او پوهې له لیاری ئې ډېر و مسایلو تفسیر کاوه.

ځینی د پخوانی فلسفې مبصران وائی چې د شکا کانو او کلبیانو مکتب وروسته له دی جریانه متاثره شو او په هغوی کې ئې افراط او مبالغې ته لاره وکړه.

د فی عالم الرؤیا له عربی کتابه څخه

لیکوونکی جبران خلیل جبران

مترجم ع «ن»

# دشاعر مرګ

کله چی شپی خپل تور څادر پر ښار وغوړاوه اوواوری سپین قمیص په واغوستی انسانانو له یخنیو څخه ماته پیدا کړه او له بازارو څخه په کورو ننوتل ·

پدې یخه څله کی چی مرغه پر ښاخ وچیدی دیوه کلی دیوه محقر کور په تنګه خونه کښی چی دواوری د ثقالت په اثر سره ئی زاړه دیوالونه ونړېدو ته نیژدی وه پرزاړه بستر باندی یو نامراده ځلمی چی اخیر ئی سوځلی ئی وهلی او د مرګ ظالم لاس ئی په ډېره بیرحمی سره داندامو سیکځ ایستلی ؤ اوېد، اوېدغزېدلی ؤ وسرته ئی یو تاریک څراغ بل ؤ چی دده پر نامرادی او ځلمیتوب باندی ئی د حسرت اودي

او ښکی تویولی ښکلی ځلمی به (چی تا به ویل ملکه د انسان په بڼه شوی ده) خپلی ملالی سترګی یو وار د څراغ وخواته واړولی او بیا به ئی ژر د نتلی زړه د یو تیوارمانو زړې خاطری ورپه زړه شوی او یوسوړ اسویلی به ئی له خولی څخه وایستی دا هغه خوږژبی شاعر ؤ چی په خوندورو شعرونو ئی مړه احساسات

ژوندی کول او دانسانانو غمجنو زړو ته ئی فرحت او خوشحالی بخښله مګر افسوس چی اوس د بیدردو انسانانو په منځ کښی وږی مری او بیله مړژواندی څراغه څخه بل مؤنس نه لری

د نړی له متنوعو نعمتو نو څخه ئی ځکه و ذکړه او د ژوند بهارئی ژر په خزآن بدل شو- دی دقدرت د بڼ بلبل او دمال وهستی د حصول په لار کی خپل د نفس عزت تر پښو لاندی نه کړ او نه ئی تر

انسانانو ځان لوړ او دخدآی مخلوق ته ئی په کښته سترګه وکتل ځکه ځنګه چی دقدرت مجادله دشعروشاعر له عالم سره له لومړی سره روانه ده نو له همدی لامله دا ځلمی شاعر پر خپلو

خواهشاتو باندی بریالی نشو او ژر د سپېڅلی غوټی په څیر سره ورژېدی ·

دغه د نړی : بڼ خوش آوازه بلبل د سرای وانګړته دهغی په امید خپلی ټولی قوا ئی سره

جمع کړی اولاسو نه ئی پورته کړه وچ د نوه وتلی باڼو ګان ئی سره وځمله چی تا به ویل غوآړی د بیو مژګان په بستو غشو سره دخونی پورته چت سوری او دآسمان روښه ستوری و وینی به دغه

حال کښی ئی په ډېره ناامیدی سره دخپلو غمجنو خاطرو دتذکر په ترڅ کښی دا وینا تر خولی وو تله زه خود-لایکو ترجمان وم چی انسانانو ته می دهغوی د هرموز و وینا و ترجمانی

نور به ۱۷ مخ کی

د ۱٤ مخ پاته

محمد عبد الغفار الهاشمی ··

د محمد عبد الغفار الحسینی الهاشمی القندهاری تألیفونه

«۱» تاریخ الافغان
«۲» روح الاسلام
«۳» القاموس الفارسی والعربی
«۴» القواعد الفارسیه
«۵» القاموس الافغان
«۶» ابتهاج العشاق
«۷» اصول الادیان
«۸» قبلة الامم
«۹» ائمه الهدی
«۱۰» التحفة الغفار وقیته فارسیته
«۱۱» القنبلة الازریه فی الاسلام
«۱۲» الجهاد فی الاسلام
«۱۳» مطالب الابتسام
«۱۴» السهام الغفاریة
«۱۵» الدخان

کوله دوی ځنو سره به می دغم کور بل واهه او د اسکیرلی یتیم پرسر به می د رحم او عاطفی لاس تیر اوه مګر افسوس چی زمانی زما سره

هیڅ وفا ونکړه او قدرت د هو مره ستونزو د تحمل په بدله کښې د غربت او مفلوکیت برخه را زیاته کړه مرګه ژر راسه او د ژوندانه د سختی چه

فطرت زما په نصیب کړیدی را باندی اسانه کړه .

مرګه! ما د خپل عطوفت په پسته غیږ کی ځینګ ونیسه ځکه چی مادمور پسته غیږ او د پلار مهر و محبت لاس

ندی لیدلی بی خسمانی او بی مینی نیسه خپل عزیز روح وتاته په دې شرط تسلیموم

چی زما د ځنکندن وفرش ته هغه فرشته د احاضره کړه چی د واوری په څیر سپین کالی

ئې اغوستی او د زیبقو هغه ګل ئې په لاس کښې وی چی د پور ته عالم په ځنګلو کی شین شوی وی د اسی بی هڅی بنځه زما سره غاړه په غاړه

کړه چی زما د نوه وتلی پوټی ستر ګی ئې پر خمار و ستر ګو روڼی او د سر و شونډ انو په مو چولو سره مې ځلبلا فده زړه ته تسکین پیدا سی هدغو

وینا وُ په ترخ کښې یو وار ی د هغه ځوانمرګ شاعر ستر ګی و ا خستلی شوی او روح یې د ملکوت وعالم ته

والوتی -

د یخی سیلی سوړ باد ته د دې ماتم د هنګامی په قیام سره قهر ورغی د شاعر د دفتر پا ڼی ئی سره متفرقی او د خونی په هر

ګوټ کښې ئې وپاشلی ا. هغه مړ ژواندی شم ئی مړ کړ .

د بنار وګړی په خوا به خوب بیده وه او د دې غم د صحنی په

برپا یه کیدو سره یو هم خبر نه ؤ کله چی سهار را ویښ شول او له ستر ګو څخه ئې د غفلت پردې لیری شوی یعنی د معرفت روڼ

لمر پر راوختی د نامرا د شاعر په یادئې په عمومی واټونو کی د هغه تمثالونه جوړ کړه اود هر کال تلین ئیولو په صدد کی شوه .

آه! انسانان څومره بی درده او ناخبره دی .

مترجم «ن»

# ابراهم لنکولن

د ابراهم لنکولن د زوکړی نیټه ۱۸۰۹ عیسوی سنه ده پلار ئې یو غریب نجار ؤ چی د شپی پر یوه ګوله ډوډۍ باندی ئې قدرت نه درلودی مور ئې خور احساسه او د لوړ همت خښتنه میرمن وه چی دده د تعلیم او تربیې په لار کی ئې ډیر کوښښ کړی او د وطنیت پاك احساسات ئې په ړګو کښې ورتزریق کړه ( مستر بورس ) وایی ، ابراهم لنکولن چی د ټولی امریکا په مره جسد کښې ئې د روح حیثیت درلودی په خپل ژوندکی ډیری د بدی او لوړی لیدلی

دی یعنی د فقر په پیسو سره به ئې کتابونه رانیول او هغه به ئې د شپی د اور ګودو د رڼائی ته مطالعه کول له دواشنګټون او هر کلی د سر ګذشت احساسات پا څونکی کتابونه

ئې هر وخت مطالعه او له هغوی څخه ئې د خپل فکر او عزم د تقویې الهام اخیستی وروسته تر دوو لسو کالو کښته ګړی او دوو کالو کتابت و سیاست ته ورشیوه

شو یعنی د سنا د مجلس د غړیتوب چوکۍ ئې اشغال کړه و وروسته د متحده ریاست جمهوری چوکی ته جګ شو . پدغه وخت کی ئې سره له دومره جاه جلاله

خپل د فقر او نیستی حال لا څو او خاطره څخه و نه ایستی دی په خپله وایی د هغه مریی خرڅولو د ننداکی منظری حلق تلخی او تاثر د ژوند تر پایه پوری زما په وجود کی باقی ؤ نو ځکه می فوراً د بر ده فروشی

منحوس اصول لغوه او د خلقو بد بینی اسباب می ځانته غوښتی کی . تاسی انصاف وکی چی په ژوند کی د بل تر محکومولو او لا بل بی انصافه او نا انیتانه کار ستته

لنکولن د ۱۸۶۵ سنی د اپریل پر ۱۵ نیټه باندی د یوه نالایقه خاین د فیر په اثر سره مړ او په ټوله ملت ئی دغم کور بل وواهه .

# سخن مجلې ته

## یوه کتنه

عبدالرحمن بلوڅ

د سخن میاشتنۍ مجله چې په ایران کښې خپرېږي په خپله نهمه ګڼه کې د (بلوڅ او بلوڅي) تر عنوان لاندې د ښاغلي علي اکبر جعفري په قلم یوه مقاله خپره کړېده، او په دې مقاله کې نوموړي لیکوال ډېر غورځې پرځې وهلې دي.

ښاغلي جعفري ډېر تاریخي حقایق هم بیان کړیدي مګر کوم وخت چې سړی تاریخي حقایق بیانول غواړي نو ورته ښایي چې یوازې تاریخ ته ګوته ونیسي او خپل احساسات پکښې داخل نه کړي.

زه غواړم چې د دغه لیکوال تحقیقات او څېړنې مؤرخینو ته وړاندې کړم او په کره نظر ورته وګورم.

---

| | |
|---|---|
| له آمو نه تر عربه [۱] | دي شریک د ننګ په کار |
| زور ګیرانو مانه وکړه | که سکندر وُ که تاتار |
| د دوی توان او واک له لاسه | شهنشاه نه وُ قـــرار |
| سره ګډ د ننګ په کار دي | د تاریخ په ټول ادوار |
| دوی په اصل ښتون بلوڅ دي | نه مغل دي نـــه تاتار |
| دي زامن د یوه پلار | د آریـن لـه لوی تبار |

د نوموړي لیکوال په عقیده بلوڅي ژبه د ایران په هیواد کې پیدا شوې ده او دده په اصطلاح د هغه ځای مال دی او له ایران څخه بیا نورو ځایو ته تللې ده او څه رنګه چې دده په مقاله کې راغلي دي «بلوڅ ساده او ساده دل» خپل اصلي هیواد هېر کړی دی. خو ښاغلی دې ته نه دی ملتفت چې د بلوڅي ژبې په برخه کښې د ډېرو پوهانو محققې او مستندې نظریې موجودې دي چې دادې په وروسته ډول ګرانو لوستونکو ته وړاندې کیږي:-

### بلوڅي ژبه او د پوهانو نظریې:

(۱) استاد حبیبي د پښتو ادبیاتو په تاریخ کښې لیکي چې بلوڅي ژبه د آریایي ژبو په ناپارسو (NON-PARSIC) کورنۍ یعنې زندپورې اړه لري چې پښتو هم اساساً له دغې کورنۍ څخه ده. [۲]

(۲) پروفیسور سر، ا، پ، جي ګریرسن وایي: «له هغو ژبو څخه چې مونږ یې ناپارسو بولو او د میدیک ژبې اطلاق هم پرې کیدای سي د پامیر ژبې دي چې په هغو کښې پښتو، بلوڅي، غلچه او ورمړي شامل دي». [۳]

---

[۱] (بحیره عرب)

[۲] د پښتو ادبیاتو تاریخ استاد حبیبي لومړی ټوک ص ۳۷

[۳] د پښتو ادبیاتو تاریخ لومړی ټوک

(۳) میجر جورج د بلوڅي ډکشنري په سریزه کښې وایي چې بلوڅي ژبه د هندي او ایراني ژبو د اتصال کړۍ ده او د دغې ژبې د پر مختګ ځای بلوچستان دی د غه راز نوموړی وایي چې د عربي ژبې تاثیر په بلوڅي کښې خورا لږ دی او نسبت و نورو همسایه ژبو ته د عربي لغات په بلوڅي کښې کم دی . [۱]

(۴) د برټانیکا دایرة المعارف لیکي چې بلوڅي ژبه تر پخواني پاړسو ته لا پخوانۍ ده او دا ژبه د پاړسو له پیالګیو نو څخه ده پیدا شوې بلکه د دې ژبې او اوستا تر منځ نژدې اړیکې شته مګر په دې کې هم شك نه شته چې په دې ژبه کښې د فارسي ، عربي او پراکرت اثر لږ و ډېر ایدل کېږي [۲]

(۵) د بلوڅي میاشتنۍ مجله د ۱۹۵٦ کال د جولایي د میاشتې په ګڼه کښې د بلوڅي ژبې د مختلفو لهجو د پر تلنې په ضمن کې وایي چې بلوڅي یوه آریایي ژبه ده او کوم تاثیر چې نورو اریایي ژبو یو پر بل کړی دی دغه ژبه هم له نورو آریایي ژبو څخه متأثره شوې ده . [۳]

(٦) دغه راز د اولس مجله لیکي : د ځینو خیال دی چې بلوڅي د پاړسو بدل شوی شکل دی ، مګر حقیقت دا دی چې بلوڅي یوه بیله ژبه ده ، البته دا به سمه وي چې دا یراني بلوچستان او د ایران سرحدونو ته نژدې اوسېدونکو بلوڅانو په ژبه د پاړسو لږ و ډېر آثر شته او په شرقي بلوڅانو د پاړسو په ځای د همسایه ژبو

لکه سندي او سرائیکي ژبو آثر لیدل کېږي . او په شرقي او غربي بلوڅي کې څه خاص بنیادي فرق نه شته یوازې د مختلف ماحول په وجه ځینې جزئي تو پیرونه لیدل کېږي او په بنیادي ډول تو له یوه بلوڅي ده . [۴]

(۷) میجر جورج د پښتو او بلوڅي ژبو په پر تلنه کې وایي چې د دواړو ژبو له پراکرت نه ډېر لغتو نه اخستي دي او د دواړو تر منځ نژدې اړیکې شته د غه ډول د کردي ژبې اصلي منبع هم بلوڅي معلومېږي نه پاړسو . [۵]

(۸) د اولس کالنۍ لیکي : د دې د پاره چې دا خبره ثابته کړو چې بلوڅي یوه اریایي ژبه ده تر ټولو لومړی باید دهغې او د نورو آریایي ژبو تر منځ یوه پر تلنه وکړو او بیا د پوهانو نظر یو ته مراجعه وکړو نوموړی کالنۍ زیاتوي چې که چیرې موږ د بلوڅي ژبې فو نیټك (PHONEGIES) ته په غور وګورو او هغه د نورو آریایي ژبو سره مقایسه کړو نو معلومېږي چې



یوه بلوڅه مېرمن په ملي سینګار کې

---

[۱] ENGLISH-BALOCHI COLLOQUAIL DICTIONARY MAGOI GEÂRGE WATERS GILDÊRTRÒN PAGE.XXVIAND VI

(۲) د برېټانیکا دایرة المعارف ۲ ټوك ص ۳۱۰۱ س ۱۷٦۴

(۳) بلوڅي ، ماهنامه ۱۹۵٦ جولای - کراچي

(۴) اولس (پښتو ژبه) خصوصي ګڼه ۱۹٦۳ کوټه بلوچستان

(۵) بلوڅي ډکشنري مجر جورج لومړی ټوك XV - V XI

داهم یوه آریایي ژبه ده مثلاً:
بلوڅي یك، پښتو یو، هندي ایك، سندي اکهرو، فارسي یك.
یا: بلوڅي دو، پښتو دوه، هندي دو، سندي ټو، فارسي دو کردي مو.
یا: بلوڅي ماس یامات پښتو مور، هندي مان، فارسي مادر، کردي مو.
یا: بلوڅي براس یا برات پښتو ورور، هندي بهایي، سندي با، فارسي برادر مګر داچې آیا بلوڅي په ایراني ډله کښې راځي یا په هندي کي یوه ګرانه خبره ده ځکه چې ددواړو اثر په کښې شته او ځیني پوهان وایي چې بلوڅي پهلوي ته نژدې کیږي.

ډیمز وایي چې بلوڅي یوه آریایي ژبه ده چې د ایران دختیځو ژبو سره زیات نژدې والی لري او دغه پورتني ژبي ټولي سره خوېندي او نه یوې مورنه زیږېدلي دي که څه هم بلوڅي له سیاسي انقلابونو او تاریخي واقعاتو څخه ډیر متأثره شوې ده خو بیا هم خپل اصلي شکل او ځیره یې خوندي کړې ده. [۱]

(۹) دار یانا دایرة المعارف لیکي: بلوڅان چې د بلوچستان نوم هم له دغې کلمې نه جوړ شویدی ددې هیواد د نفوس زیاته برخه تشکیلوي او ددوی ژبه د آریایي ډلي په هندوار وپایي ژبو پوري اړه لري. [۲]

دغه راز نوموړې دایرة المعارف زیاتوي چې د آریایانو ګڼه ژبه چې (۳۰۰۰ ق م) په شاخوا کي پیدا شوې ده په لاندې ښاخونو ویشله کیږي جرماني، سلتي، روماني (ایطالوي، فرانسوي هسپانوي پرتګالي) سلاوي، بالتیکي، هندو- باختري. مګر هندو باختري بیادوې څانګې لري (هندي او باختري).

د هندي ډلې پخواني شکلونه (دویدشا نسکرت اوپراکرت) ژبې دي او نني ژبې چې له هغې نه جوړې شوې دي (بنګالي، آسامي، ګجراتي، سندي، پنجابي) او نورې ژبې دي او په باختري کورنۍ کي کردي فارسي، پښتو او بلوڅي شامل دي چې ددوی پخواني شکلونه فرس قدیم اوستا یاژند او پهلوي ژبه ده. [۳]

(۱۰) دحدودالعالم په کتاب کښې لیکل شوي دي چې: بلوچها که زبان ایشان بدسته شمال غربي لهجه اریایي متعلق است بعدها به کرمان مهاجرت کردند و از مهاجرین بعدی این سرزمین شمرده می شوند. [۴]

(۱۱) د برتیانیکه دایرة المعارف د (بلوچستان) تر عنوان لاندې لیکي چې د بلوچستان مشهور ژبې پښتو، بلوڅي او جټکي دي چې پښتو او بلوڅي په (IRANÎAN) او جټکي د (-EUROPEAN ÎNDO) په (INDIAN) څانګه پورې اړه لري. (۱)

(۱۲) دغه ډول د کولمبیا دایرة المعارف زیاتوي چې بلوڅي یوه اندو اروپایي (INDOEAR-OPEAN) ژبه ده. [۵]

(۱۳) امریکا دایرة المعارف وایي چې بلوڅي د بلوچستان ژبه ده او داژبه د (IRANION) (آریایي ژبو له ګروپ څخه ده په دې ژبه کي دوه ډیالکټونه لیدل کیږي (بر هیویي او بلوڅي یا رخشاني). [۶]

(نور بیا)

[۱] اولس سالتاك (په بلوڅي ژبه) ګویټه بلوچستان ص۸-۱۳ س۱۹۶۳.
[۲] آریانا دایرة المعارف ۴ ټوك ص۲۰۳ س۱۳۴۱.
[۳] آریانا دایرة المعارف ۴ ټوك ص۴۴۸ س۱۳۴۱.
[۴] Èncyclopedía Britoniea Pag .9.V3
[۵] TL.e Columbia Encyc lopedia Ǹewyork 1754-1895
[۶] The Encyc lopedia America aP.123



لیکونکی: انتوان چخوف

ژباړونکی «ن»، اڅکځ

# د بیکارۍ شدت



آنا په د کور ټولو اوسیدونکو او د دغه ژوند سره سځا ترسر پرستي لاندي وي... او هم په دماشومانو د خرڅ لپاره ټاکل شوی مقرري ور کوي.

د زده کونکي رنګ ببخی الوتی او په ریږ د بدلي بدن سره ئي ورو وویل:

البته که ئي آنا سیمونونا قبوله کړي زه به د بوه شرافتمند سړي په حیث مسؤلیت پر غاړه... مګر زه هم فقیر او نیستمند یم! هر څه که....!

اخاته د کورخاوندد زده کونکي لاس و نیوی څوواره ئي وښوراوه په تپولی آواز او خوشحالی سره ئي وویل: واقعاً چې ته یو شرافتمند سړی ئي؟ تشکر کوم - په هرحال ته د قطعي تصمیم نیولو د پاره یوه هفته وخت در کوم په مضمون یې ول فکر وکړه.

د کورخاوند د زده کونکي څنګ ته پرچوکۍ کښیښوست او په دواړو لاسو کې خپل مخ پټ کی، او په بوغاروئي وویل،

زما پر سر د ټ څه ټکه واچوله تا زما د ژوند شیرازه وشلوله، تا زما هغه مالدینه چې پر ما تر خپل ځان هم ګرانه وه زما له لاسه وایسته خیر زه ګمان نه کوم چې د دغسې خطرناکي پیښې طاقت ولرم... نور نو زما د ژوند څخه څه نه دي پاتې.

ځلمی په غمجن ډول د هغه خوا ته کتلې خپل تن ئي و ګراوه ټول وجود ئي وحشت نیولی و د آه تر کښلو وروسته ئي وویل:

نیکلای اندریویچه!! تقصیر ټوله ستا خپل دی. یو معروف مثال دی چې وایی «هغه څوک چې وغواړي خپل سر له آفته جلا کړي نو رنو د خپلو ویښتانو فکر نه کوي» بنه یې درپیاد کړه چې تا فقط د آنا سره د هغې د پیسو او شتمنی په لحاظ واده وکړ.... وروسته تر هغه نو د ژوند په ټوله موده کښې د هغې یوه نشوی او ورته متوجه نه سوی! او بر عکس دی د هغې د عصبانیت او نا آرامی اسباب را نو ټول. د هغې د انسانی زړه او روح په پاکو غوښتنو دې څه اعتماد هم نه کوله..!

نیکلای آندریویچ په چټکی سره خپل لاسونه له مخ څخه لیري کړه او پوښتنه ئي وکړه.

دا خبره هغې پخپله درته کړیده؟؟!

بلی! هغې پخپله راته ویلی دي؟؟ زه د هغې له ټول ژوند څخه خبر یم، له هغې سره زما مینه یوازې د هغې د ښکلا په سبب نه ده بلکه په دې لحاظ هغې سره مینه لرم چې هغه یوه بدمرغه او رنځ لیدلی انسانه ده.

د کور څښتن په غمجن ډول په داغی حال کښې چې له چوکۍ څخه ولاړیدی وویل:

ته شرافتمند سړی ئي د خدای په امان! انشاء الله چې نیکمرغه ئي! البته پدې پاڼه یم د دغه خبری چې زموږ تر منځ شویدي زموږ تر منځ به پاته شي.

نیکلای اندریویچ یوه پلاسویلی وایستله او د خپل کورخواته وخوځیده. لاری په منځ کی له آنا سیمونونا سره مخامخ شوی او له هغې څخه ئي پوښتنه وکړه.

څه قصه ده؟ په خپل ملګری پسې ګرځی! او رسه وکوره چې څه حال لري او څه بلا می پر سر ور واچوله! ښه داهم راته ووایه چې آیا دا فرصت ئي مینځلی دی چې د خپل ژوند ټولی قصې ورته وکړی؟! ټ پر ښه خدای شاهد دی زه نه پوهیږم چې ولی تاسې ښځی په دغه عمر کښې دغسې عجیب رفتار او اخلاق و مومې نور نو په ښکلا سره نشی کولای چې ځوانان په دام کی واچوی په دغه وخت کښې د هغو د لطیفو روحیو او او مو احساساتو سره بازی کوی او هغوی ته بی معنی اڅ

چټې خبرې کوې، څنګه جملې چې تا هغه ته نه دي ويلې ؟؟ .

ته مې د پيسو په خاطر غوښتې ئې ؟! ستا په احساساتو نشوم پوهيدې ؟؟ ته مې عصباني او ناآرامه کوې ؟ زهره !!؟!

آناسيمو نو نا په غضب شوه او په عصباني نيت سره ئې وويل !

په ما هغه ته څه نه دي ويلي ...

نه خواهش کوم، خواهش کوم ... زه ستا حال ته توجه لرم او له تا سره به خوا خوږي وکړم ... ته مه بېريږه خو نامند او غوږ مالي ه کوم فقط يوازې مې د هغه ظلمي پر حال زړه سوزي !! څومره پاک او نجيب سړی دی .

کله چې شپه شوه د کورخاوند يوه پلاد چکر او هوا خورۍ د پاره له کوره ووت، شپه ډېره عالي او خوندوره وه، ونې ټولې په ژور خوب بيدې وې داسې ايسېده چې هيڅ طوفان به دا قدرت ونلري چې هغوی له هغه درانه خوبه څخه راپاڅوي، ستوري په آسمان کښې ستر ګکونه وهل او له ليرې ځايه د بلبلو آواز او نه اوريدل کيدل .

نيکلای آندريويچ د ګڼو ونو په منځ کښې چکر واهه ! ناڅاپه ئې څنګر د هغه زده کونکی له څنګر سره وښت .

د کور خاوند په تعجب سره پوښتنه وکړه ؟
ته دلته څه کوې ؟؟!

هغه ځلمی په داسې حال کی چې له ډار نه ږيږدي دی په خبرو شروع وکړه .

نيکلای آندريويچه !! غوږ نيسه ! زه ستا له ټولو شرايطو سره موافقه لرم مګر ... دغه جريانات څومره عجب ايسي . ته يوه پلاري مقدمې وا ئې چې بد بخته شوی ئې ... رنځ ګالی، د ژوند شېرزاه دې شکيدلی ده .

بلی ! همدا ډول ده لکه څنګه چې ته وايې منظور دې څه شی دی ؟ !

که تا ته توهين شوی دی، هر څومره چې زه عقيده نلرم مګر ستا د غوښتنې سره سم حاضر يم چې ستا د غوښتنې په مطابق رفتار وکړم که دوئل ستا د درد د تسکين باعث ګرځي او ستا درد آرام وی زه حاضر يم چې که ته وغواړې حتی سل واره هم دوئل وکړم :

د کور خاوند په خندا کښې د ځلمي په ملا کې لاس اچولی او وئي ويل :

بښه ! بښه بس دی ما فقط ستا سره يوه وړه ټوکه وکړه، دا موضوع ډېره وړوکې او بې اهميته ده، اصلاً دغه پسته ادناپا که ښځه دا ارزښت نه لري چې ته دومره ناآرامه شې او ډېری غوښ او عالي خبرې پر هغې نثار کړې ! ګرانه ځلميه بس دی راځه چې ولاړ شو او چکر ووهو !!

وبخښه ! زه ستا په خبرو نه پوهيږم !!

لازمه هم نه ده چې پوه وپوهيږې ! ښځه چې کنچيني سپ پسته او بې ارزښته ده ! تعجب به وکړې که پوه شې چې زه د خپلې مانديني په باره کښې همدا عقيده لرم البته نه ښائي چې زه تا ته دا خبرې وکړم مګر بيا هم ته تر يوې اندازې پورې په دې باره کښې زينفعه ئې او په دې خوا-کښې زه او ته د مشترکې علاقې خاوندان يو نو ځکه زه ستا سره پوست کنده خبرې کوم او هيڅ شی در څخه نه پټوم تا ته په واضح ډول وايم ... دې د پلار قبر ... دا هيڅ ارزښت نلري هر څه چې ئې تا ته ويلي دي دروغ او له حقيقت څخه ليرې دي دا بدمرغه او بې عقله ښځه ده .

ګرانه خدای شاهد دی چې دا ټول رشتيا دي ستا سره ټوکې نه کوم .

زده کونکي په ډېر تعجب سره وويل :

دا څه خبرې دي .. دا چې هر څه وي ستا مانديني ده ؟

ای بابا څه اشکال خو نلري ! يوه ورځ زه هم ستا په شان ساده او د ښځې زړه خاوند وم او د خپل حماقت په اساس مې له هغې سره واده وکړه مګر اوس له خدايه غواړم چې له هغې څخه خلاص شم مګر افسوس ... ګرانه ! ډېر ليرې ده ! حتی د فکر کولو ارزښت هم نلري، زه پوهيږم چې ته له هغې سره کم علاقه او مينه نلرې فقط دوزګار نيادندت په اثر غواړې چې له هغې سره لوبې وکړې وفرمايه !

[پاته په ۲۴ مخ کی]

«۴»

د عبد الصمد «نصر خوا» ژباړه

# ارسطو او د هغه فلسفي معضلې

ایا له ټولو بدن څخه او که د بدن له څینو برخو څخه؟

د غه مشابهتونه چې د انسانانو په مابین کښې په یوه فاصله منځته راځي د ادلوموړي فرضیې د باطلولو اثبات دی او د ارسطو د غه عقیده او څېړنه د (مندل) نامي د نیاتاتو معروف عالم د هغه ژور تحقیقات او څېړني څخه چې په [۱۸۲۲-۱۸۸۴] عیسوي کال کښې کړې دي چنداني پاته زه ده ·

د ارسطو علمي فکرونه د بیولوژي په برخه کښې چې یو ه لویه علمي آبدده د هیڅ وخت لپاره به د بشر له یاده ونه وزي او دا باید وویل شي چې بیولوژي د ارسطو د مخه عبارت د څو پراګنده او پریشانه افکارو څخه وه مګر ارسطو هغه ته علمي جنبه ورکړه او په یوه مستقم کښې ئې راوسته چې همدغه افتخار دده دژوندي ساتلو لپاره کافي دی ·

## د ارسطو نظر په د بدیعیاتو په هکله:

وایې چې ارسطو د بدیعیاتو په برخه کښې پخپله دوه مشهور و کتابو کي لکه (پوئتیکا او ره توریکا) دغه بحث کړیدی او لاندې عبارتونه هم د دغو دوه کتابو څخه مأخذ شو یدی ·

ارسطو لومړی جمال د شیانو له نقطی نظره تر مطالعې لاندې نیولی دی او دی داړنګه وائي :-

زه ځینې احساسات او مشاعر خوښ لرم ځکه د غه د خارجي عواملو دادراک وسیله ده او هرشي د دغو په واسطه زده کولای شو او محبوب ترینه حس زما په نزد د باصری حس دی او دغه حس نسبت و نورو ټولو رحواسوته د علم په راغونډولو کښې ډیره برخه لري ټول انسانان د هغو صورتو او نفیسو شیانو څخه چې د یوه ماهر صنعتګر له لاسه راوتلي وي خوند اخلي او ځکه چې د هر شي د زده کړي ذوق دانسانانو په نهاد کښې وجود لري او کوم شي چې ښه ورته ښکاره شي هغه په حس کوي او د ذوق احساسات ئې راپاربوي او که وګړای شي نود هغو نظریه په منځته راوړي او په دې توګه تقلیدي حس انسانان د جمیله او نفیسه شیانو و خوښولو ته وادار کړي ·

## د جمال نښې د ارسطو په نظر

د ارسطو په عقیده د جمال نښې درې شیان دي-

نظام تناظر، تناسب، او معین حدود ·

ارسطو دغه درې شرطونه هم په طبیعت او هم په جمعیت کښې پیدا کړیدی ځکه دی وائي · که په یوه اطاق کښې د شیانو او څیزونو په ښه ترتیب شوي وي نو اطاق ښه ښکاریدونکی خو په طبیعت کښې د کائناتو ټول اجزاوي مرتب او منظم وي او په طبیعت کښې هیڅ شی د نظام او قوانینو څخه عاري نه دی او څرنګه چې نظام او قوانین په طبیعت کښې دي او انسانان هم یو جز د طبیعت دي نو که دده حرکات او سکنات په ټولنه کښې د قانون په دائره کې وي احرکات ټولنه ښه دي او که د قانون تر دائرې د باندي قدم اږدي نو د ملامتي او سرزنش مورد ګرزي ·

انسان که په خوړلو، پیدیدلو او حرکت کولو کښې د خپل بدن طبعي نظام او قوانین

وساتی نو دغلته ګټه ده او بېله دغه به ضرر ووینی که چېری انسان د خپل طبیعت د قانون برخلاف حرکات کوی نو حتماً به له ناجوړېو سره مخامخ کېږی نو دا معلومه شوه چې په هرشی کی د نظام درلودل د جمال او ښه والی نښه ده .

ارسطو په تناسب او تناظر په هکله وایی چې زما مطلب په تناسب کښی پوره او کامل نسبت په هغو شیانو کی دی چې په کارنانو کښی موجودی دی ارسطو په عقیده تناسب په هرشی کښی اوسط حد د هغه شی دی دی وائی هر وجود چې د تناسب او آهنګ څخه خالی وی هغه شی په حقیقت کښی ناقصه، ضعیفه او غیر طبیعی وی همدارنګه که دیوه ذیروح دوجود په اعضاؤ کی عدم تناسب وایدز شی په حقیقت کښی هغه وجود مریض دی اد که د هغه په وینو، اعصابو او عضلاتو کی نظام و نه لیدل-شی نو هغه کمزوری دی او که دده په رنګ او بشر کښی د طبیعت نظام و نه لیدل شی نو هغه کریهی منظره وی او دده د ښکلا مخل دی ارسطو د معینو حدودو په هکله وائی چې معین حدود دلاتینا هینو ضد دی وایی که یو شی معین حدود و نه لری نو د هغه شی پېژندل او په ذهن کښی ځای ورکول امکان نلری ځکه نو له شیان چې په طبیعت او دلوی خدای په مخلوقاتو کی وجود لری د حدودو خاوندان دی او کوم شیان چې معین حدود لری هغه طبعاً ښه او ښکلی وی او څرنګه چې ژوندهم وجود لری یعنی لومړی زېږیدنه او دوهم مرګ دی نو ځکه د ښو او زیبا شیانو په زمره کښی حسابېږی .

ارسطو غیر له درو پورتنیو شرطو څخه یو بل شرط هم په دغه زمینه کښی راوړی او وائی چې عظمت هم د جمال یوه ښه تلقی کیدای شی دغه فیلسوف خپله نظریه داډول ښکاره کوی چې د ذیروح یا غیر ذیروح مخلوقاتو څخه که یو شی د دغه درې ګونی ذکر شوی اوصاف هم ولری مګر د هغه شی ډېر لوی والی او یا ډېر کوچنیوالی هم د جمال فعل ګرزی : ځکه چې د هغه شی ډېر لوی والی او یا ډېر کوچنیوالی یه پوره پلا تر نظر تیرېدلای نشی ارسطو د شعر په حصه کښی هم د غه ځلور اوصافو ته اشاره کوی او وایی د دې لپاره چې یو شعر د جمال منعکس کننده وی بنائی د غه څلور ګونی اوصاف په کښی ځای شوی وی چې په عبارت اوشی سره اماده شی .

ارسطو د جمال او ښه په تو پیر کښی داسی نظریه لری؟ کله چې ارسطو د جمال په حصه کی خپل معلومات بشپړ کوی نو دیو بل مشکل سره هم مخامخ کېږی او د هغه څخه بیله څېړ نی تېرېده ناجائزه بولی دی د جمال او ښه په مورد کښی داسی وایی چې د ښه او جمال فرق دادی چې ښه د عمل نه ماورای څخه او جمال د شی د ماهیت څخه ظهور کوی نو د ارسطو په نظر جمال عبارت د نظام ، تناسب او معین حدودو څخه دی چې څلرم شرط یعنی ډېر لویوالی هم ورسره ضم وی -

پای

[د ۲۲ مخ پاته]

# دیکاری شوت

هغه ده ناستا سیاز موږ د کرو ینځه هغه ده راروانه ده ۱۰۰۰ ای ته چیری ځی ؟!

هغی جواب ورکړ! باداره! ځم چې د بی بی دپاره لیمو رانیسم .

ډېر ښه ولاړه شه !

د کورخاوند خپلو خبرو په تعقیب وویل :

بلی ! عشقبازی او مینه له دغسی ښځو سره معنی لری مګر دغه ښځی چې نه پېری عقل ئی له لاسه ورکړی او خپل ځانو ته ئی ګورانی اد بد مرغی بولی ، هیڅ ارزښت نلری ! له هغو څخه ځان لیری وساته ! هر څو مری چې ناستا سیا څوانه او بیعقله ښځه نه مګر له ځانه راضی او هوښیاره ښځه نه ده کیف یی ډېر دی ، زویه ! زه ده دی غواړی چې لږ ځه شا ته چکر ووهو !!

د کور ښتن او زده کونکی په قدم وهلو پیل وکړ او له ښځه ووتل ، په دې وخت کی ئی یوه پلا بیا شا و خوا ته وکتل او په چکر ئی شروع وکړه .

پای

لیکوالکی رهبر فاروقی
د الماسو اصلیت او ماهیت

٤

مترجم عبدالقدوس [ن]

# د کوه نور الماس

مطابق ئې خپله لنګوټه ددهٔ پر سر او ددهٔ لنګوټه ئې پر خپل سر باندی کښېښووله.
شاشجاع چې دی له خپلو قدیمو نمک خورو څخه یا له اوددهٔ له سکه ورور شا زمان

سره ئې دمها بت سنګ نومی په قضیه کی زیات کومکونه کړی وه نودی پوره پوهاوهٔ چې نوموړی به لهٔده سره هیڅ رنګه غلا او نمک حرامی و نه کړی مګر ده‌ی

ملعون داټول چموته دا زونه د کوه نور او نور و الماسو د پلاس راوړلو په غرض کوله په ابتدائی ددهٔ خیال داو چې شاشجاع به کوه نور زما د خیر وی احسانو په بدل

کښې را کی او یا به ئې ددې تنګ دستی په موقع کښی په جزوی قیمت را باندی خرڅ کړی وختی چې ئې شاشجاع مستغنی ولیدی او

ددهٔ دې خیال پلو کومه نتیجه ور نکړه یوه ورځ ئې په یوه محفل کښی د کوه نور د غوښتلو مطالبه څخنی وکړه شاشجاع چې پدی وخت کښی ددهٔ په مطلب پوه شو نو راز په راز بهانی ئې

ورته د مخه کړی.
رنجیت چې لدی لیاری څخه نا کامه شو نو لدې بلی لاری څخه ور ته راغی او شاه شجاع ته ئې یو لیک واستاوه په هغه کښی ئې لده څخه ټینګ خواهش وکړ چې د الماس هر څومره قیمت

چې کیږی د هغه د تادیې په بدله کښی پدې شرط چې په یوه واری به ئې نه غواړی ما ته را که شاشجاع د زمانی د ګردش او د زیاتو پریشانیو په وجه یوا ځکل قیمت ور ته و لیکه د رنجیت سنګ ددې لیک په جواب

کی پره تسلی ورسوه او پوره متیقین شو چې نو موړی الماس ضرور ور سره سته په ملهٔ څوور څو څخه ئې پنځه زره نا انک شاهی روپی د لو مړی قسمت په ډول ور واستول سوی مګر شاه شجاع هغه قبولی

نکړی او د کوم ترون د لیک غوښتنه ئې څخنی وکړه او دا ئې هم ورته ولیکله تر څو چې کوم دست آویز او سند زما وسته په لاس نشی کښی لاس لیک نشی ز ه له ور کړی څخه

د کوه نور معافی غواړم.
وختی چې رنجیت سنګ دا محسوس کړه چې له شاه شجاع څخه د الماس په آسانی سره نشم لاس ته کولای نو عطا محمد نومی د کشمیر حاکم ئې پر دې باندی

وګماره چې شاه شجاع په کومه بهانه سره کشمیر ته ور وغواړی او هلته ئې بندی کړی عطامحمد چې پوست اعتقاده سړی او د بل پر څول ناڅېدی شاه شجاع ته ئې

ولیکه ز ه چې ستا له صمیمی مخلصانو څخه یم غواړم چې حق د نمک دی د کشمیر د حکومت په در کولو سره ادا کم او د شاه محمود په مقابل کښی ستا هر ډول ملاتړی

وکم کله چې دا لیک شاشجاع ته ورسیدی خور اخوشحاله سو بیله چرت و هلو څخه مخ پر کشمیر راهی شو او د کوه نور الماس ئې ما ندینی ته پرینبوده مخه د کشمیر تر

رسیدو پیښور ته ولاړی پدې مقصد چې هلته څخنی حربی اسباب غونډ کړی عطا محمد چې ددهٔ د پیښور د تګه خبر سو خپل د لښکر څو تنه مشران

ئې سره د یوی دستی عسکرو پیښور ته واستول ظاهره ئې رنګه دا په وا غوستی چې ددوی تګ پیښور ته د شاه شجاع د حربی سامان لیدلو په غرض دی مګر کله چې نوموړی پیښور ته

ورسیدله شاه شجاع ئې په بالاحصار کښې محاصره او زندو بندئې کشمیر ته واستاوه هلته چې نوموړی حاکم هر څه وکړه نو نوموړی الماس ئې ونه کوتو ته وره‌نغلی خو به پای کې متیقین شو چې له شاشجاع څخه نسته نو رنجیت ته ئې و لیکله چې هلته ئې دده له ماندینې څخه حصول کړه د شاه شجاع ماندینه چې وفادار بیګمه نومیدله او دو فادار خان لوروه یوه زړه وره او پر پښتو ټینګه پښتنه وه د مهاراجار نجیت خړو پړو او نور و چالو خطانه ایستلای شوای.

رنجیت چې پوه سو لدې لارې څخه خپل مقاصد ته ندی نشم بیو لای نو له هغې بیوزلی پښتنی سره دزور لار واخستله د کور ټول اسباب ئې څخه ضبط کړ غیر له یوه پوړه ئې او داغوستو له کالیو څخه ئې بل شی ورپرینښود پدې اسبابو کې که څه هم ډیر قیمتی الماس پلاس ورغله لاکن کوه نور چې ده زړه پر بایللی ؤ نه کوتو ته وره‌نغلی په دا ندا کښې که څه هم ده پر یوغټ آلماس باندې د کوه نور ګمان وکی مګر په آخر کې هغو کسانو چې کوه نور ئې لیدلی ؤ اميدو رقطع کی له دې لارې څخه چې ئې څه ولاس ته ورنغله یعنې د کوه نورالماس په اخستنه سره موفق نشو نوئې شدادې ظلم ته لاس ورته کی د بیګمې خواری نوکران ئې وایستله او ددې څخه ئې ووړی منع کړه په شپو شپو به خواره شومه نهاره ناسته وه خو سره له هو مره مصائبو ئې له وفا داری پښتنې څخه وانه خستلای شوای.

بیګمې خواری چې دې مصائبو ته وکتله او له بلې خوا څخه ئې میړه په بند کښې ولیدی نود کوه نور ور کړه ئې مناسبه وګڼله او رنجیت سنګ ته ئې احوال واستاوه ورته وې ویله تر دې چې لا زیات زحمت راباندې راولې لاپی ئشی اخستلای اماد پښتنو الې په قول سره زه پدې شرط د ا الماس تا ته درکوم چې ته شاه له بندیخانې څخه خلاص او بیر ته خپل جای ګیر په لاس ورکې دې احوال رنجیت سنګ له ډیرې خوشحالی څخه په زغا راوستی او دستی د شاه شجاع د خلاصیت په فکر کښې شو.

د خدای کړه وه پدې وخت کښې شاه محمود پر کشمیر باندې حمله وکړه او له رنجیت سنګ څخه یې د مرستې کولو خواهش وکی.

رنجیت سر کوزی چې به دو تې او دبنمې ئې اعتبار نه ؤ سره له هغو بنو چې عطا محمد خان ورسره کړې وه د محمود پله و نیوله او دخپو شرطو دقبلو نې په شرط ئې له محمو د سره عسکری امداد وکی هغه ؤ چې نو موړی حاکم مات او ملک ئې د محمود په لاس کې شو.

شاه شجاع چې پدې وخت کښې په کشمیر کښې بندی ؤ د رنجیت سنګ سره د عهد او پیمان په مطابق تحت الحفظ لاهور ته واستول شو هلته ئې خوراهلق تلخی ده آو ماندینې د رنجیت له لاسه څخه ولیدل په پای کې مجبور شو یوه فرضی عهد نامه ئې ورسره ولیکل چې په هغه کښې د څنو شرطو ایفا کول رنجیت پر څان ومنله او ګرو وه ناکه په نامه او نورو مذهبی کتابو سره ئې قسمو نه واخیستله.

شاه شجاع چې له هری خوالار پر ځان بنده ولیدله او یو ې خو ته ئې مخ نه ګرزیدی نو مجبور ؤ ئې د کوه نور ور کړی ته غاړه کښېښووله.

په ۱۸۱۳ عیسوی سنه کې یو هیئت چې عبارت له فقیر عزیز الدین بهائی ګور بخش سنګ او جمعدار کهو سلا-سنګ څخه ؤ شاه شجاع دوی ته د کوه نور دراوړلو په غرض واستول شوه مګر شاه شجاع دوی ته جواب ورکی او ورته وې ویله نور بیا

حفيظ الله «صائم»

# دپښتنو تعاملی حقوق

## مورلاسی

دځینو پښتنو په اصطلاح سره هغه قاتل ته وائی چی په خپل لاس ئی قتل او مړی کړی وی دا په هغه وخت کښی معلومیږی چی قاتل معاون هم ولری او دمعاون سزا دمورلاسی تر هغی څه سپکه وی.

تبصره :- په پورته عنوان کی موږ څه دشاغلی «پښتوا» دلیکنی څخه استفاده کړیده

## غچ

په پښتنو کی غچ د (انتقام) په معنی راځی خوشحال خان وائی :

څو وانخلی له غلیمه انتقام
مرد نه خوب کا نه خواړه کا نه آرام

وائی چی پښتانه هیڅکله خپل انتقام نه پریږدی که څه هم په زرو کلو نه تیرشی لکه چی دا متل دی

پښتون سل کاله وروسته خپل بدل واخیست ویل تلوار ئی وکی.

## تیږه

تیږه هغی ړبری ته وائی چی ددوو کوندو یا قبیلو او ټولو ترمابین د صلحی یا تړون یا تعطیل په ټول سره ایښوول کیږی په بله څیړنه سره دا تیږه د هغی معاهدی او صلحی حکم لری چی ددوو ضدینو او دښمنو په منځ کی لاس لیک شی. مثلاً که څو قبیلی سره په جګړه کی وی او بیا دواړی ډلی او خواوی وغواړی چی خپله جګړه تر یوه معین وخت پوری وځنډوی نو په خپل مابین کی تیږه اږدی یعنی جوړه او تړون کوی. دا تړون دومره ټینګ وی چی یو څو اهم دهغه دماتولو اقدام نشه کولای. کله کله دا تیږه په قومی قضائی پیښو او فیصلو کی هم استعمال لیږی دلته نو د تاوان په معنا راځی نو ځینی تیږی درنی او ځینی سپکی دی که جرم او ګناه درنه وی تیږه درنه او که جرم سپک وی نو تیږه هم سپکه وی.

## ننواتی

په پښتنو کی رسم دی کوم وخت که ددوو تنو دوو کورنیو یا دوو قبیلو په منځ کی جګړه او وړه سوه نو مغلوب په خوا ددی دپاره چی خپل ځان له مغلوبیت او جګړی څخه وباسی نو څو تنه مشران او سپین ږیری او سیدان هغه غالب طرف ته ور لیږی چی ددوی عذر وغواړی.

دافغانانو په نظر کی ننواتی ډیر اهمیت لری او هغه څوک چی پر چا ننواتی وکی نو که څه هم ډیر تاوانی شوی وی ترور تیریږی.

ننواتی چی په پښتنو کی ومنی بدکار دی ضرور بایدو نه منل شی په حقیقت کی ننواتی په پښتنو کی ډیر لوړ اجلری او یو لوی عار او ننګ ئی بولی که څه هم یو خواه ډیره کمزوره وی ننواتی نه پرکوی ولی چی پښتنی ننګ ورته دریږی لکه چی وائی که پلانی پرپلانی باندی ننواتی وکړ به ئی وبخښی لیکن چیری دا پښتنی ننګ قبلوی

## پرغمل

دا یوه جنګی اصطلاح ده کله چی ددوو ډیرو په مابین کی جنګ شی او بیا آخیر ته ورسیږی نو هره خوا چی بی اعتماده وه نو د هغی بلی خوا څخه یو یا څو کسه د امانت او اعتبار په ټول ور پریږدی چی دی امانت او اعتبار ته (پرغمل) وائی.

محمد نبي احمدوال:

# ساینس د ډاروین نظریات تردیدوي

انساني کرامت د ساینس په دنیا کې اساسي رکن ګڼل کیږي.
دانسان خلقت د ساینس په عالم کې د لوی قدرت کارنامه ده چې د بیولوژۍ پر قوانینو بنا سویده اما ډاروین د خپلو نظریاتو په لړ کې وائي د ژوندانه خلقت د امیبا (امیب) په سلسله راشروع سویدی.
اود امیبا د سلسلې څخه د ذوحیاتینو دورې ته داخل سوی اود ذوحیاتینو د دورې په سلسله کې فقاریه حیوانات تشکیل سوي او د فقاریه حیواناتو په لړ کې انسان منځ ته راغلی دی.
په عوامي توګه د ډاروین د نظریې یادونه:

## ډاروین داسې نظریه لري

چې د ژوندانه تخلیق په اول کې امیب د ژوندون په څېره ظاهر سو او د امیب د تکاملي سیر څخه د چنګښې په څېر حیوانان منځ ته راغله چې په وچه او اوبو کې ئې ژوند کاوه اود چنګښو د تکاملي سیر څخه د بیزو ګانو په څېر حیوانان منځ ته راغله اود بیزو ګانو د تکاملي سیر څخه انسانانو موجودیت وموندی

دا نظریات ساینس تردیدوي اود بیولوژۍ په چوکاټ کښې ارزښت نه لري.
اوس د ساینس بیولوژي علوم ښکاره کړه چې انسان مستقل مخلوق اود کرامت خاوند دی او پدې باره کښې د ډاروین نظریات ټوله تردید او د منلو وړ نه دي.

(اصلي موضوع)
د ساینس په دنیا کښې تکاملي سیر او تکثر
اول: د امیب حجروي تکثر.
دوهم د انساني حجروي تکثر
اول. د امیب حجروي تکثر د تقاطع پر قانون ولاړ دی.
دوهم: د انسان حجروي تکثر د القاء د قانون په اساس بنا سویدی.

## اول د تقاطع قوانین

دا قوانین بې له سانترو زمو څخه د کروموزوم د تکثر په اساس خپل مراحل تیروي. یعني د امیب په حجره کښې سانترو زومونه نه سته کروموزومونه د خپل انبساطي مراحلو له مخې د طرد د قانون په اساس سره جلا کیږي

او ددې دوه جنبو کروموزو د غشاء په جدار کې فزیکي عوامل اجرا کیږي اود دې دوو جنبو کتلوي توازن غشا په نورمال ډول سره ویشي اود یوې امیبې حجرې څخه دوې امیبې جلاجلا حجرې تشکیل کیږي او یو د بله بیولوژي ارتباط هم نه سره لري.

## دوهم القاء قوانین

دا قوانین د سانتروزم تر شعاع لاندې د کروموزوم د تکثر په اساس منځ ته راځي هغه وخت چې نیم سپرمیوم مذکر او نیم سپرمیوم مؤنث خپل ځانونه سره یوځای کې او ملقه حجره تشکیل کې د دغې ملقې حجرې په دوه قطبو

کښې دوه ځلانده ستوری دسانترو زوم په نامه پیداسی .
اوداده ځلانده ستوری دواقعیت له مخه ډېر کوچنی دی خپله شعاع اوجاذبه قوه پر کروزومو باندی واچوی اوددې شعاعو تر موجولاندی کروموزومونه خپل تکثر ته دوام ورکوی .
او دسانترو زومی قطبونو دجاذبی پر قدرت کروموزمونه سره جلا کیږی .

او کروموزومونه دجفت په حال کی په دوو جنبو وېشل کیږی او هره جنبه ځان ته دحجری شکل غوره کوی او دا لقاپه قانون کی په داسی مراحلو تکثر اجرا کیږی .
دالقادقانون په حجروی تکثر کې بیولوژیکی ارتباط همیشه قایم وی او حجری یوله بله

هیڅ وخت نسی بیلېدلای او یو دبل په جدار کی تړیوه ارتباطلاندی خپل فعالیت ته دوام ورکوی .
تاسی ددې دوو قوانینو دتشریح څخه پوه سواست چې دتقاطع او القاقوانین یوله بله بیل قوانین لری .

چې دا بټد ا څخه دژوندانه دخلقت په ځانګړه توګه منځ ته راغلی دی .
ددې دوو قوانینو له مخې دډاروین نظریات دساینس په دنیاکې تردید او دمنلو وړ ندی ولی چې دامیب دحجری سیستم او دا سان دحجری سیستم دساینس له پلوه یو ډول ندی دامیب تکثر

او دانسان تکثر پر جلاجلا او ځانګړی بیولوژیکی سیستمو بناسویدی .
نوله دې سببه دډاروین نظریات نشو منلای .
ساینس علومو دامیب دژوندانه قوانین

د حیوا ناتو دژوندانه قوانین او دانسانانو دژوندانه قوانین دمبدا او حجراتو له مخې سره تفریق کړیدی .

# دذوحیاتینو په باره کی دډاروین تردید !

ذوحیاتین حیوانات هم دژوندانه په اساس دانسان دژوندانه قوانینو سره نه ګډېږدونکی توپیر لری دذوحیاتینو حیوا ناتو تکثر دهګیو په آزاده هوا کی سرته رسیږی .

او دانسان تکثر په خپل داخلی موجودیت کی بشپړ کیږی .
او ذوحیاتینو دوینی ترکیب دمسو دمخلوط په اساس منځ ته راغلی دی .
او دانسانانو دوینو سیستم داوسپنی دمخلوط په اساس ترکیب شویدی .

دډاروین قضاوت اوس دوینو دګروپ په اساس ساینس تردیدوی .
یعنی ځرنګه کیدای سی چې دمسو دوینی ګروپ د اوسپنی دوینو په ګروپ تبدیل سی .
داتعمل دبیولوژی په قوانینو کی امکان نه لری .

او دبیولوژی قوانینو له مخې د ذوحیاتینو دتکامل څخه انسانان موجودیت ندی موندلی ځکه چې دابتدا څخه دژوندانه دخلقت دذوحیاتینو او انسانانو دوینو ګروپو فرق درلود .

# د فقاریه حیوانانو او انسانانو بیلوالی

هرچاته دا ځرګنده ده چې حیوانی ډلی دزوج په صورت خپل نسل ته بقاء ورکوی .
او دهری ډلی تخمونه یا نیمی فعالی حجری دارتقاء مراحل سرته رسوی او د هری ډلی حیوانان دخپلی ډلی لپاره دی او دهری ډلی حیوانانو تخمونه یا نیمی فعالی حجری دبلی

ډلې لپاره مؤثر نه دی .

څکه چې د امتزاج قوانین په خپله ډله پورې اړه لري او د هرې ډلې له پاره خپل امتزاجي قوانین سته .

د بیولوژۍ قوانینو له مخې که موږ د انسان نیمه فعاله حجره د بیولوژیکي

او نسل ګیري په اساس په ټولو حیواناتو کې امتحان

کو غیر له انسان څخه په هیڅ ډول حیوان کې د تکثر نتیجه نه ورکوي .

د دې څخه پوهیږو چې انسان د هیڅ حیواني ګروپ او ډلې سره ارتباط نلري .

او پدې باره کې هم د ډاروین نظریات غلط او د منلو وړ نه دی .

د ساینس په دنیا کې انسان مستقل مخلوق او د کرامت

خاوند دی او د انسان تکامل او تسلسل د انسان پر ظاهري موجودیت بنا سوی دی .

انسان د خپل خلقت له مخې د لوی قدرت کارنامه ده .

چې د ژوندانه په عمل کې ئې د خپلو ممیزه صفاتو او د بغه خواصو او ادراکاتو په مرسته د انساني کارنامو

نوی دنیا منځ ته راوستلې ده

د دې څخه پوهیږو چې د حیواناتو د تکامل سیر او د انسان د تکامل سیر ساینس

بلتني غواړي تش په خبرو نه حل کیږي د امر احل د ساینس بیولوژي ترڅیړنې لاندې نه ترا . روښانه کیدای سي باید موږ په تشو نظریو او غلطو افکارو ونه غولیږو او باید د ساینس په دنیا کښې خپل افکار په ساینسي توګه روښانه کواو پر سمه لار خپل حرکت ته دوام ورکو چې د حقیقت منزل ته ورسیږو او د قدرت مظاهر زموږ ولبیک ته حاضر سي .

ټولونکی نثار احمد (رعیا)

# د نړۍ مشهور نقاشان

## آبر

د فرانسې یو مشهور رسام و چې د تاریخي مناظرو نقاشي ئې کولې چې د نمبیانه او علي سبک خاوند و په ګرو فویل کې پیدا شوی دی او په ترانش کې مړ شوی دی د ۱۸۱۷ څخه تر ۱۹۰۸م پورې ده ډېر و نه ایکلې دی چې مهم اثار متوي یې دا دي : ملاریا، طفل او د مسیح خوب .

## البانو فرانسکو

یو ایطالوي نقاش چې په بولونیا کې زیږیدلی دی او د ۱۵۷۸ څخه تر ۱۶۶۰م پورې ئې ژوند کاوه ده د نړۍ معلم کیلورټ او بیاکراکسای و . آلبانو فرانسکو په روم کې اکاډمي افتتاح کړه او هلته ئې په نقاشي شروع و کړه او مهم آثار ئې وایکل چې اکثره یې په بولونیا کې او نور یې په لور فلورانس او اینګلرا ډ کې سته دی .

## آلبرتي لیون باتستا

د ۱۴۰۴ څخه تر ۱۴۷۲م پورې ئې ژوند کاوه یو ایطالوی نقاش شاعر، فیلسوف، موسیقي دان او معمار دی چې په لاتیني غزلو ویلو کې ئې پوره مهارت درلود او مشهور اثر یې کامدي ئیلودوکسیوس دی چې په موسیقۍ کې ډېر شهرت لري او د معماري آثاري یې په ماڼې ګانو او کامسیاڼو او نورو ودانیو کې لیدل کیږي .

## آتنینه

یو مشهور فرانسوی نقاش دی چې د ۱۸۱۸ څخه تر ۱۸۷۸ پورې ژوندی و (دیوی مور-وروستني بنګلول) د دغه نقاش مشهور و تابلوګانو څخه دی .

د ټاګور اثر



# سفر

محبوبې د سهار پر وخت چې دې زما په غوږ کښې په ډېره نرمه لهجه سره وویل چې زه او ته به په هغه بادباندار کښتۍ کې ودریاب ته ولاړ شو او هیڅ څوك به د دغې پرمخ له دې سفره څخه وهغه نامعلوم ځای ته خبر نه وي .

په هغه لوی سیند (اوقیانوس) کښې چې ستا په وړاندې آرام او پټه خوله دی زما زړه ورونکی نغمې به لکه هغه آزادې څپې خپرېږي .

آیا نو هغه وخت نه دی را رسېدلی ؟ او اوس کار و نه وړاندې سته افسوس .

چې شپه د آسمان پر مخنېږه راپورته کېږي او دریابې خاچونې. په هغه نور کې چې ژړ دی نیست او ورك شي و خپلو ځایو ته الوزي آه د ښځګیران به کله پرې سي او دا کښتۍ به کله لکه هغه وروستنۍ وړانګې د شپې په تور ودر پېلو کښې رهي شي .

د [ریدی] ترجمه



د ګوئیته اثر

## نیکو کاران پر خپل حال پرېږدی

که څوك خوشحاله وی همسایه ئې افسرده وی او هغه ورځ چې همسایه ئې خوښ وی بیا دی په یو غم اخته وی .

پوهان هم دغه رنګه د ناپوهانو د خشم او کینې څخه په ربړ دی اما کله چې یو د دوی څخه مړ شي نو خلك پر هغه ژاړی او ویشوواخ کوی او پر نامه ئې اعانه ټولوی چې د ده په یادونه یادګار جوړ کړی او نوم ئې دابد پاره ژوندی وساتی

که زما څخه پوښتی وایم ، چې د خدای پر پار نیکو کاران لا اقل پسله مرګه پر خپل حال پرېږدی او په دوی اړه مه لرئ او په خپله به ډېر خوښ وی .

د پیغلی [فریدی] ترجمه



په پورتنی عکس کښې درضا کارو میرمنو دهیئت غړی چې څه موده
مخکښې کندهار ته درضا کارو میرمنو مؤسسې ته دمرستې
دور کړې په غرض راغلې وې د کندهار درضا کارو
میرمنو دغړو او آمری سره لیدل کیږی ٠